دستاد ځای وړونکی

# سپرغۍ




دکاوون توفانی

دِ شعرونو مجموعه

١٣٦٢ کال

## کا وو ن

# اود کاوون شعر

((زه دتر خه سکوت دغره‌له‌شا نه
زه‌دناکامو ارمانونودایروله ځنگه
دویروو نکو توروشپو په‌زړه کی
دشعر کو تروته پرواز ورکوم
زه سکوت نه‌پیژ نم
زما دشعر ژبه سکوت نه منی
زه‌به دشپی ځنگل په ستوروباندی-
وو لمه
ځوچی سکوت مات شی
ځوچی تیاری و تښتی
ځوچی رسوا شی په ځنگله‌کی
ځیروو نکی لیوا ن...))

په ډیره کرار ی دژو ندا نه‌دنغری په ایرو کی چی هلته پری ز خمی زړونه کباب شوی گوتیٔو هو . په‌ایروکی سپرغی وینو هغه سپرغی چی ځومره پلتلی شی ،هغومر ه تازه کیږ ی تودو خه یی‌زیاتیږی او په انسان کی دتودو خی‌اوحرارت تنده هم زیاتوی.

سپر غی دخپلو ستر گکو نو په‌هره شیبه کی کیسی کوی.دحوادثو پیښو او واقعاتو کیسی ، سپرغی،دتوروشپو دتورو ښا ما رانودوحشت کیسی‌وا یی اود تورو شپو دتور تم په‌زړه کی دامیدو نو او آرزو گا نو دسباوون ځر کو نه منعکسوی.

پوهیږی سپرغی، دکا وون توفانی‌دشعرو نو لومړ نی مجمو عه ده .
کاوون یو زلمی دی ، دو طـــــن درنگینی هستی ډیر ښه گل دی چی

زموږ دهیر سر گردانه متحمله اوباصبره نسل دسر بنند نو ترجمانی کوی.

سپرغی دکاوون دیوی لسیزی دخپگانونو ، تاثراتو، غوښتنو او هیلو سپرغی دی، نه یوازی دده بلکی دده دزمان او دده دهمزولو او همسنگرو ملگرو.

کاوو ن تو فانی زموږ دنسل‌شاعر دی ،دځوا ن نسل شا عر ،د هغه په شعر کی د ځوا نی ولولی پهخپو دی، دهغه دشعر پهبیت بیت کی احساس،عاطفه‌له‌محکوم اومظلومو لس سره پیو ستون او وروری او همدا راز انقلا بی هیلی پرتی دی.

اودکاو ون‌دشعر دغه او سنی مجموعه (سپرغی) د کاوون دځوانی شاعری نماینده مجموعه ده، اولومړنی مجموعه ! داشعرونه دشاعر دزړه سپرغی دی اوهغه شا عرچی له زړه یی سپرغی راووریږی او له سپر غیو څخه شعر و نهجوړ شی .ددا سی یوه شا عر په شعر کی به نوخومره جو ش ،خومره یون اوخومره تکل پروت‌وی!

دکاوو ن دزړه پهسپر غیو کی ،یعنی‌د(سپرغی) په شعری مجموعه کی‌دنهو ،لسو کلو نو شعرو نهسره‌یوځای شوی او را غونډ شویدی، دشاعر دلو مړ نیو شعری تجار بو بیلگی اوبیارا‌وروسته دا سی شعرو نه چی شاعر پکی بنسواولوړو شعر ی تجر بو ته رسید لی دی‌او شاعرا نه نوی مفا هیم یی پکی خلق کړیدی.

دما یا کوفسکی دغه خبره چی:((شعردیوه ژور تونلنیز درد زیږنده ده یا باید وی اودغسی درد دشاعر پهوړاندی داجتما عی سپار بنتنی له لاری راڅرگندیږی)).

دیره عمده مساله ده ،یومعا صر شاعر باید دخپلی شاعری مضمون او محتوی له همد غسی‌ژوروومعاصروپیښو او دردو نو څخه‌جوړه کړی. خو ددی په څنگ کی هغه باید د خپلو آثارو ، هنری اړ خو نو ته هم پوره پا ملر نه‌و کړی.

دکاوون په‌شعر کی دخپل عصـــر دردو نو ته نه‌یواز ی داچی‌پاملر نه شویده .بلکی همد غه دردو نه دی‌چی د هغه شعرونه یی جوړکړیدی. اوهمدغه در دونه دی‌چی (سپر غی) تری‌جوړی شوی‌دی. کا وون په خپلو اشعارو کی ډیر نو ی‌اوخوازه‌شعری مفا هیم ا یـجاد وی . داد یوه شاعر له پاره ضرور ی اودپام‌وړ خبره ده چی باید دقت‌ور تـــه وکړی او له نیکه مرغه چی کاوون دخوا ن معا صر شاعر په عنوا ن دی مسا لی ته متو جه دی .دهغـه ځینی‌شعرو نه خو ډیر نو ی او ډیر ښکلی دی. دداسی شعرو نو بیلګی په‌سپرغیو کی هم زیا تی دی. له بلی خوا شاعر. دخپل زمان شا عر دی .دخپلو ملګرو تبعید ،زندا نی کیدل، مخفی کیدل ،ټول دده‌دحساس ذهن په‌و ړاندی تیر شوی اود چـا خبره له‌نژ دی یی دخپلو ملګـــرو شهاد تونه لیدلی ، اود هغـــــــه شهاد تونو اور دده دشعر پـــــه‌سپر غیو بدل شوی لکه :

بیاد قصاب‌چاړه‌په‌و ینو سره‌شوه
بیایو انسان‌وینو کی ولمبیده
بیادو حشی جلاد په‌تورو لا سو
یوقهرمان وینو کی ولمبیده

او یا داچی :

زه اوته ،
دواړه په ګله سره
لاړ وو دوینو په لار
شپه توفانی غوندی وه
اولاره ډیره پاتی

سړو سیلیو وچو دښتو کی نخـا کوله
ځنګل ډوب شوی و دویری اوسکوت پهسیند کی
او

زما په وچو شو نډو
پډی سپیرو خزان وهلو پا ڼو
دوینو شعر لکه بی باکه نسیم
اوړ ی ، را اوړی او چلیـــــړی پسی

او په همدی ډول نورشعرو نه چیشاعرپکی خواږه مفا هیم ایجاد کړیدی . دغه ډولشعرونه په پښتو ځوانه شاعری کی ډېر زیاتارزښت وړدی او که کاوون د خپلی شاعریهمد غه اړ خ تهزیاته پا ملر نهوکړی دابهنو دکاوو ن پهشاعری کیدهنری اړ خو نو دقوت ثبو تونه وی.
غزل ، دکاوو ن توفا نی دشعر یومخلا نده برخه ده ، دهغه غز ل خوږ او پهزړه پور ی دی، له یوی خوا دعاشقانهبزم ګرمی لری اوله بلی خوا دهغه پهغز لو کی هــــمدخپل عصر غو ښتنی اود شا عـر دذهن انعکاسا ت تصو یر شو یاو را څر ګند شو یدی .

مینه می عالم ته افسانه شوله
ډیرو تو متو ته بهانه شوله
هومره میرسواشو له رسوامینه
څومره چی میګرمه ترانهشو له
مینه یی زما آشنا ته خامه کړه
خدایه !څو مره خا مه زما نــــهشو له
او یا دغه غزل چی :

نور می پهزړه باندی دا غو نــــهمهږده
سوی سینه کی می اورونـــــــــهمه ږده
نور نو شر بت کی زهر مهراکوه
په وچـــوشونډو می جا مو نه مــــه ږده


F

دمرورو او ښکو سور سیلاب ته
دلباسی وعدو بندو نه مه ږده

چی هیلی ځوانی وی نوته رانه‌غلی
اوس په ایرو یی قدمو نـــــه مه ږده

دکاوون په شاعری کی د انقلابی‌سندرو ، دانقلا بی نغمواودانقلا بی ترانو تله درنه ده ځکه چی هغـــه‌دانقلاب دتودو شیبو شاعردی او دهغه په شعر کی انقلابی او مانونه باید په څرگنده تو گه منعکس‌شی. هغه او س دانقلاب له پاره ترا نی بو لی . هغه اوس دانقلاب‌شهیدانو ته دگلا نو دگیډ یو پر ځای خپـل شعرو نه نذرانه کوی او هغه اوس سنگرو نه او رزمو نه ستا یی اوباید یی هم‌وستایی.

هغه چی دخپل ویاړ لی تار یخی‌وطن په سر دروکی رالوی شویدی نو ددی هیواد په ستاینه پسی قلم‌را اخلی . خو بد مر غی چی‌گو ری چپ‌نه پاتی کیږی. وایی اوبیا ،بیاوایی:

وطن می
داقهرمان اوغیر تی‌و طن می
د((لوی شیطان)) دنیر نگو نوپه اور
دسرما یی په‌سو زو نکو لمبو
سوی ستی شو لکه سوی‌ویتنام
خو ...
داسو زید لی اوزخمی وطن می
داقهرما ن اوغیر تی وطن می
اوداسر کش او توفانی‌وطن می
لاهمغسی استوار پاتی دی

aa

دکاوو ن لەسپر غیو نه مو ڕ تەجوتیڕ ی چی دی لا همغسیاستوار پاتی دی پەپیچو مو داو چت پا میرسرته خیڕی . اوله هغه څایه دنیا گوری . موڕ کەله او له تر آ خره سپرغی و گورو نو موڕ له یوەداسی تکی شخه شروع کوو چی آخر یی ورسره هیڅ نەپر تلەکیڕ ی اودا د شاعر شعری عروج بنیی.

دکا وون د شعرو نو له کتنی او مطالعی شخه وروسته پەزما نی لحاظ دانبکارەکیڕ ی چی هغەغواڕی په خپله شاعری کی اوپه خپل هنر کی لو ڕو هنری تجاربو تەورسیڕی او همد غه خبره ده چی دکاوو ند راتلو نکولانبو شعرو نو زیری بەپکی وی.

کاوون بەترانی وایی ،کاوو ن بەچپ نەکینی او کاوو ن به له خپلـو خلکو سره دشعر له لاری خبـری کوی ،ځکه چی هغه شاعر دی ا و شاعر باید همدا سی وی !اودکاوون دسپر غیو په خپریدو به ،دشا عر غږونه ټولو خلکو ته ورسیږی .

پدی هیله چی «سپرغی» خپری شی اود شاعر دزړه او سینیدنغری سپرغی ټولووینی او بنی یی وویني!

او پدی هیله چی دشا عر دزړ ه او سینی دنغری له او رونو ، ا و سکرو ټو تل سپرغی را پورته شی او تل تری ښکلی شعرو نه جو ړ شی .خود ماتمنه ،دښاد ی او د شعر !!

**اکبر کر گر**
**۱ــ ۱۱ــ ۱۳۶۱**

# د وطن مینه

سر ورته مه وایه چې شور نلري
مټ ورته مه وایه چې زور نلري
توره ډېره ده زړه ندی هغه
چې د وطن د مینې اور نلري

# نەخاییری

آهو نە می دزڕە پە پنجرو کی نە خاییری
فکرو نـــە لیونی می زولنو کی نە خاییری
آزادیم پیدا شوی زە آزادیزندگی تـــــە
ژو نلون خو پەقیدواو بندیزوکی نەخاییری
کە تنگی حوصلی شوی نوتوفان بەتری نە جوڕ شی
رودو نە می داو بنکو پەسیندو کی نەخاییری
کەیو اسویلی وکڕ م نو جهان بەتول لمبە شی
اورونەدسینی می پە پردو کی نە خا ییری
کە هرڅو زو لنی اوزنځیرو نـــە ورتە جوڕ کڕی
سر کشە توفانونە زندانو کی نە خا ییـــری
(کاوونە) ورتە گـــورە حـــوادث توفانی شوی
و تلـــی آرزو گا نی دی سینوکی نەخاییری

**لقمان**

٥- ١١- ١٣٥١

# ترخې ګیلې

نن بیا دیارکو څی ته له سلګو سره ور ځم
له ډېر و آرزو ګانو او اسرو سره ور ځم

دسترګو په ډو لېمو کې ورته ډېر داوښکو ناوې
د مینې په امید له زړ یدو سره ور ځم

ورځم دز خمی زړه یوځو ګیلې ورته کومه
آشناته له تر خو تر خو ګیلو سره ور ځم

پرون مې آرزو ګانې بینواورځنی را غلی
نن زه له رټل شوو امیدو سره ور ځم

نن ځم دیار په مخکې به په چیغو چیغو ژاړم
داو ښکو مر غلر و امیلو سره ور ځم

ورځمه اودزړه ټول ارما نو نه ور تهوایم
د سوو آرزو ګانو قافلو سره ور ځم

ورځم چې دز خمی زړه خو کتری یې مخ ته کېږدم
(کاوونه) له غمجنو ترانو سره ور ځم

**لغمان**
**۲۵-۹- ۱۳۵۱**

# اختــرتــه

اختره راغلی ستړی مه شی ښه‌چی‌بیا راغلی
داسی‌ښکاریږی چی خو شحا ل او په خندا راغلی
ښه شو چی راغلی ستارا تلو ته انتظارومه زه
نور خلهٔ ی راوړل که‌یواز ی اوتنها را غلـــی

• • •

اختره اووایه ربښتیا موږ ته دی څه‌شی راوړل
غم دی‌په مو ږ که حوا له او که خندا دی راوړه
تا خو شا لی او مستی موږته‌ارمغان راوړی
نه‌نه،پوهیږم سراسر غو له ژړا د ی راو ړه

موږ ستاراتلو ته خو شحال نه يو دغمو اختره
تابه نو څه کړو چې موږ وږ ی يو دوږی نه لرو
ته به زمونږه غمو هلی زړونه څه خوشحال کړی
په پښولو ځپه تن بر بنډ پهسر خو لی نه لرو

* * *

زمونږ کوروڼو کی دغم توره تیاره خورهده
دی تورو حو ـــو کی اختر څه کړی خندا څه کړی
زموږ کوروڼو کی بربنډ وږی په نس ما شو مان
خوشحا لی څه کړی، مستی څه ، اختره تا څه کـړی

* * *

اختره لاړ شه په جو نګړ و کی نو څه شی غواړ ی
په مینه مینه خوشحا لی لوړو قصرو ته لاړشه
لاړشه نیو لی یی لاو ختهترتیبات دی درته
لاړ شه رنګینو تعمیر او بلډ نګو ته لا ړ شـــه

* * *

لاړ شه هغو ته چی ژو ندون یی ټول اختر دی
هره شیبه چی کړی خو بنی او خندا ګا نی کوی
هغوی چی مست دی په شرا بو او کبابو باندی
خاندی ، مستی کوی ، خو بنی اونڅا ګانی کو ی

* * *

موږ دوز خیان یو ستا یی څـــهله دوز خیانو سره
ورځه ورځه چیر ته بی درده جنتیا ن پیداکړه
چیرته دزرو اود زور په لیو نومیلمه شه
چیر ته بیغمه نازو لی انسا نا ن پیدا کـــړه

تەدما نیو افتخار یی دجونګړ و نەیی
تە پە ګراچ اوپە کیږدی کیځـاییدلی نە شی
تەپە ګراچ او پە کیږی کـیځاییدلی نەشی
زموږ دود جنو کنډ والو کـیاوسیدلی نە شی

* * *

هلتہ چی ګور مە پہ جګو ړنګینەقصرو کی
دمظلوم وینو باندی وینمـــه«غتهان» مستیږی
دمز دورانو دزړو وینی شـــو یشراب «مړو» تە
پری‌با ندی هلتەظالما ن او خونخوا ران مستیږی

* * *

دلتە چی ګور م تورو توروکنـډوالو کی وینم
پەتن بر بنډاو پەنس وږ ی ماشوما ن ژاړی
دلتە لە هری خوانە اور م دژ ړا آوازدی
سپیرەپە خاورو پە کو څو کی یتیما ن ژ ا ړ ی

* * *

ستایی پر یڅه کە څوك بر بنډګرځی کالی نە لری
ستایی پری څه کە څوك دلوږ ی نە[illegible]کیږیدلتە
ستایی پری څه کە دچا ملاکړ لەبارونو ما تە
ستایی‌پری څه کەڅوك غارونو کی او سیږی دلتە

اختر هغه دی چی غمجنو ته خندا راو لی

اختر هغه د ی چی دردو نو ته دوا راو لـــــی

اختر هغه ذی چی ماړه کـــړی وږی تږی خلك

اختر هغه د ی چی تیارو لره رڼا راو لـــــــی

* * *

نو تا به څه کړم دغمو نو او دردو اختره

بس دی نو لاړ شه دا غمجن زړه می نورمه دردوه

په مخ دی ښه شه گرانه لاړ شه آشنایانو ته دی

زما د سو ی زړه دردو نه نو نور مه زیاتوه

**لغمان**

۲۶-۸- ۱۳۵۰



# دزلفو تور

چې دې و کاته په مينه ز مـــالورته
اور را ننوو ت ز ما دزړ گې کور تـه
دنظر غشو دې زړه زما سوری که
په ورووروسي لمسو ی د ميني شور تـه
ستاد شو نډو سر خی اور را باندی بل که
د پتنگـــک غوندی ځان اچوم سره اور ته
له تومت او بدنامي نه نه ويريږم
دستا ميني آماده کړ مه پيغور تـــه
ستا د خنو تا ريکی مـی په زړه گرځی
څه په تپينگک شم ستا دتورو زلفو تور تـه
که هر څو مي زړه دتيږ ی غوندی کلك که
خو کلك نه شو دخو نکارو سترگو زور ته
نه (کاوون) دستا دزلفو بنديوا ن يم
بی لتا نه حاجت نه لرم ،غمخور تـه

لقمان

۳ر۳ر ۱۳۵۳

# سره لاره

تیره به داشپه داستبداد شی او رڼا به شی
بنه دوطن به شی بدله په‌خنـــدا به‌شی
رابه شی صنم زما
محوه به شی غم زما
درد زما ماتم زما
څه چی استبداد را ځنی وړیدی زما به شی

• • •

شپه ډیره تیاره ده لاره تو لــه کړلیچونه دی
هر قدم خطر دی هره لویشته‌کی دا مونه‌دی
دالاره مزل غواړ ی
جنګ غواړی تکل غواړ ی
منلی او یرغل غواړی
هغوی به پری درومی چی پاخه‌یی‌ایما نونه دی

دغه توره شپه بی له غیر تـــه ورکیدی نه شی
دغه اوږ ده لاره بی له جنگـــه لنډیدی نه شی
داپه‌و ینوسره لاره
داکړه‌وږه لاره
سخته او اوږ ده‌لاره
بی له قربانۍ او سر ښندنې‌پری کیدی نه شی

* * *

ځو به پدی‌لاره لنډه وو به یی رسیږوبه
خیر دی که غورزیږ ولا پیاو ړی راجگیږوبه
مات به‌شی دښمن زمو ږ
پاك به شی وطن زموږ
سور به شی چمن زموږ
بیابه نو آزاد یویو له بله قـــر بانیږو به

* * *

داد غیر تمنو ننگیا لیو پر گنو وطن
داد کار گرانو ،بز گرانو د جنگو وطن
ظلم نه آزاد به شی
وبه خاندی ښادبه شی
ټول جهان کی یادبه شی
داد افتخار ځلی دخلکو د ننگو وطن

کابل ـ مخفیگاه
٤ر۱ر ۱۳٥۸

# وطنـــه !

وطنه !

ستا گلونه
اوستا ددښتو اغزی
سپيری ډبرې ،خړې لوټې، لمر وهلی دښتې
اوبی‌پروا بادو نه

دلوړو غرو نو څو کی
دتوفانونو څالی
دخونړی خيبر رنګينی دری
دهندو کش اود پامير اودسالنګ سرو نه

دستر آمو او اباسين ستم شکنه څپی
اود هلمند دتوفانی څپو بی‌باکه سرود
باد او باران بريښنا او تنــدر او ځپاند سينډو نه

توری کيږ دی او سر ګردانه‌کلی
خړی جونګړ ی اوزړی څپر ی
جګی اوټيټی کلا ګا نی اوختين کورونه
ماته له هرڅه ګران دی
زه يی لمانځنه کوم

او ،

ستا انسان

ستا زورید لی انسان

دازیار ایستو نکی ر نځیدلـی دردیدلی انسان

داد شا هانو امیرانو دستم لـه لاسه

راپرزید لی انسان

داد بنکیلاك اودزبیښا ك پـــه زهر جنه توره

په خپلو و ینو کی سور شو ی لمبیدلی انسان

دا زور ید لی انسا ن

ماته له هرڅه گران دنیا

داچیزنځیر یې دی ما ت کړ ی له لاسو او پښو

داچې په‌سره لاره روان دی مـخ په‌وړ اندی درو می

آزاد انسان دی غولید لی نه‌شی

نورنو په دام او په تلك کـــی بندیدلی نه‌شی

او تمبیدلی نه شی

وطنه

تاجوړوی

ستاد آزاد اودآباد ژو نـــدون دنیاجوړوی

نـــو

ماته له هرڅه گران دی

زه یی لمانځنه کوم

دازیار ایستو نکی دردید لـــی زورید لی انسان

کابل پوهنتون

۱۴ره‌ر ۱۳۵۹

# مینه

مینه می عالم ته افسانـــه شو له
ډیرو تو متو ته بها نه شو لـــه

هومره می رسوا شو له رسوا مینه
څومره چې می گرمه ترا نه شو لـــه

مینه یې زما آشنا ته ځامـــه کړه
خدا یه! څومره ځا مه زما نه شو لـــه

خیر دی که څوانی می لوغړ نه شوه
حسن دآشنا ته ندرا نه شو لـــه

سترگو دساقی کی لا مستـــی شته ده
څه شو که می ما ته پیمانه شو له

خو دبه می دزړه تخته دا غجنه وی
غشو دجفا ته نښا نه شو لـــه

تل می سوزوی په سرو سکروټو کی
مینه داورونو خزانه شو لـــه

تل دی وی زما دا لیونـــی مینه
هم راته ساقی هم میخانه شو له

ماته می له خپله ځا نه گرانه ده
خیر دی که عالم ته افسانه شو له

**کابل پوهنتون**
**۱۵ر۷ر۱۳۵۷**

# د مزدور چیغه

چې ظالمان تری نه ویریږي د مزدور چیغه ده
دنګې ماڼۍ چې پرې لړزيږي د مزدورچیغه ده
چې دطلا او لاسر ما یې په کورماتم جوړوي
چې غریبان ور ته خو بښیږي دمزدور چیغه ده
چې دخاین په‌سر لګیږي لکه‌تندر غوندې
چې مظلومان پرې راویښیږي د مزدور چیغه ده
چې ظالمانو ته دمرګ اود فنا آوازدي
چې خو نخوا ران پرې تباه کیږي د مزدور چیغه‌ده
چې په بیساه و یدو جسمونو کې ژوندون ویښوي
چې آسمانونو ته رسیږي د مزدور چیغه ده
چې سرې جګړې ته هڅوي ستم وهلې خلک
چې له هر لوري راجګیږي د مزدور چیغه ده
چې په ګولیو و پشتنل کیږي لا لوړیږي پسې
چې په‌تو پونو نه بندیږي د مزدور چیغه ده
له‌نیمې لارې نه یې هیڅ ـــــو ګرځولای نه شي
چې خپل منزل ته‌به رسیږي د مزدور چیغه‌ده

**لغمان**
**۱۵ر۶ر۱۳۵۷**

# زندانی ملگروته

ملگرو ستا سو په او چتو ارادو می قسم
چی دا پاخه عزمو نه هیڅـوك ماتو لی نه شی
ستاسو په پښو کی کړی تور ی اچوی شی هنم
خو دتاریخ څرخو نه شا تـــــه تمبو لی نه شی

* * *

هغو مغزو کی چی لمبی دانقلاب بلی وی
دزردارانو په پوکی با نـــــد ی سړیږی کله
هغو رګو نو کی چیو ینه دغیرت چلیږی
دسر مایی له غلا مانو نه و یریږی کله

* * *

هغه سرو نه چی په ژو ند چا ته ټیټ شو ی نه وی
هغوی به ویره له زنځیر او لـــه زندانه څه کړی
هغوی چی سر خاوری کو ی د خلکو سر لوړوی
هغوی به تیښته در زمونــو لــه میدانه څه کړی

نن چې دښمن موږ ته زنځیر او زولنې ښوروي
ماته د مستو لیو نو غوندې خندا راشي
زه چې دتوروزو لنو مستهشو نګا اورمه
دغیرت وینې شي تودې زړه ته نخا را شـــــي

* * *

دښمن دې بیاتوږ ی پـــر دې د ارتجاع خوری کړي
موږ به دتورې شپې په زړه کې مشالونه بل کړو
دې دزمو ږ دزړو سکروټې پــــه پو کې سړوي
مونږه بهبیا ور ته دنیا دنیااورونه بل کړو

* * *

زما دپاکې عقید ې اې ننګیا لیوملګرو !
قسم دې ستا سوولو لې ما ته جرأت را ببښي
ستاسو دهینګو ارادو او کلک ایمان خبرې
زړه تهسرور سترګو ته نور مټ ته قوت رابښي

* * *

زموږ هورا او زموږ چیغې بـــهرا ویښ کړی خلك
غوغا به جوړه کړې ځپا ند بـــه شي توفان دخلکو
داستبداد تور زندانو نه به کړی دړې وړې
یکې لا هو به شي له مخې دښمنان دخلکو

**کابل**
**۱۳۵۵ر۳ر۷**

# تابه وژړوم

درته‌بەو لیکم شعرو نه تا بـــه وژړوم
د سو ی مینی داستانو نه تابه وژ ړو م
خیر دی که مادر ته ژړ ل تاپتهول راځنی
زه‌به‌رسواکړمه رازو نه تابه و ژ ړوم
تابه خند لی مابه او ښکی‌تو یولی درته
اوس بـــه روان کړ مه‌رودونه تابه وژړو م
تاپه خندا خندا زما په هیلـــو اور پور ی‌که
زه‌به‌کبا ب کړم خپل هڼو نه تابه وژ ړو م
دزړه پر هار مې لکه گل ستا نا کردو ته خاندی
تازه بـه‌وساتم گلو نه تابـه و ژ ړو م
دزړه په تیره دی زما او ښکو اثرو نه‌که
او س‌به‌پری سم‌کړم توفانونه تابه وژ ړوم
داو ښکو ستوری می ځلیږ ی دبڼو په څو کو
تری نه‌به‌جوړکړم تندرو نه‌تابه وژ ړو م
چی می دزړه و ینو کی لا مبـی ځوانیمر گی هیلی
ور ته لر مـه امیدونه تابـــــه و ژ ړو م
تاچی تهول عمر جفاو کړه‌ارمانی پاتی شوی
زه به پور ه کړم ارما نو نه تا به و ژړ و م

کابل
٤ره‌ز ١٣٥٧

# پری می ږدی

پری می ږدی چی لاړ شم لیو نی شمه
سر شمه په غرو نو غر ښخنی شمه
یاد سو ی زړه په اور کبا ب شمه
و ښو ز م لوګی شم سپیلنی شمه

* * *

پری می ږدی چی و لوبیږ م غم سره
ښا یی چی غمو نو ته پیدا به یم
دابه می ((قسمت)) وی شکو ه نه کوم
سو ز به یمه ، درد به یم ، ژړا به یم

* * *

سترګو نوری و چی له ژړا نه شی
نور زما دزړه په درد و مه ژا ړ ی
ښا یی زه به دا سی بد نصیب یمه
بس کړی نورزما په غمو مه ژا ړی

ورکی شی ای او ښکو نــوری مه څاڅي
لوند به‌وی ترخوخیری گریوان ز ما
پرین دی مونږه پرین دی تاسی لری شي
زه او دفکرو نو لوی جهان زمــــا

* * *

لاړی شی ناکا مو هیلــــولاړی شی
زه چیرته او تاسي ما نه څــــه غواړی
زه ډوب د غمو نو په دریــاب کی یم
تا سی خوشالی او خندیده غواړی

* * *

دلته خو هر خوا پراته غمو نه دی
دلته خوشالی چیرته خندا چیرته
سوزی آرزو گانی شنی لوخړی دی
دلته روشنایی چیرته رڼا چیرتــه

* * *

دلته تجاوز قیضه شکولـــی ده
هرڅه چی‌یی زړه غواړی کولی شی
ډیر د هیلو ډک زړو نه یی‌خاوری کړل
ښان د بل په وینو مستولی شــــی

بس که ای‌زړ گیه نور نو مـــه ژاړه
گوره د یاغی هیلو تو فان بـــه شم
داخواره وګړ ی بهرا غو نـــدکړ مه
کور داستبداد پهلور روان‌به شم

* * *

پری بهکړم تانګو نه دزا ړه‌نظام
شنه‌به‌هره خوا ته سره ګلو نه شـــی
لمر دعدا لت به پلو شـــــی وګړی
لوړ به هره خوا سره بیر غو نه شی

* * *

بیابه نو غمو نه شی پـــر د ی‌له ما
دنور به نه‌لو بیبزم له غمو سره
مست به یمه مینه کی خو شا ل بهیم
خا نلمه بهزه خپلو شعرو ســـــره

لقمان
۱۸ـ جدی ـ ۱۳۵۱

# ازار زړه

خدایه څنګه کړم غمجن او بــــې قرار زړه
دردید لــې ربړ ید لی خــــــواروزارزړه
له هر خوا پری بارانو نه دغـم اوری
پیدا نه شــو زما زړه ته یو غمخـــوار ز ړ ه
دغمو نو پهسیخانو ژوبل شو ی
دا غمجن اولوغړ ن پر هار پر هــار زړه
لهطا لمی زما نی نه مرور دی
دغمو نــو تورو شپو کی ګر فتــــار زړه
دآشنا دبی غور ی دلا ســـــهزاړی
ددوستا نوڅانڅا نیو نــــــه آزا ر زړ ه
خدایه ! یاور ته تسل مینه کیورکړه
یا دروا خله دابیو سه اوناچار زړ ه

**لغمان**
**۵ــ۹ــ ۱۳۵۱**

# د سردرو پیغلی‌ته

ای دهندو کش اود پا میر دسر دروپیغلی
ای‌ددنگو خوکو ددی جگو جگو غرو پیغلـــی

ای دیما لوری دافغان د امید وغوتی
ای د مـلا لی دسترگو نوره دجنگو پیغلـــی

پاخیږه راویښه شه لږ فکر د ژوندو ن وکړه
خو بهٔیی تږ لـــی‌پدی تورو ز نخـیرو پیـغلـی

داتوره پنجره کړه دړی وړ ی اوراووزه تری
مات که د غیه تور تور دیوا لونه دقر نو ،پیغلـــی

پاخیږه دژو ند په‌نوی لاره‌حرکت وکړه
خیری که‌پردی په‌زور د متو اولا سو ، پیغلـــی

ته‌یوازی نه یی پدی لاره کی‌لوگی دی‌شم
تاسره ملگر ی خلك دټولو ملتو ، پیغلـــی

ته یو لوی قوت یی خان به خـوپوری عاجز گنی
مه تیروه‌ژو ند نور په افسوس اوژ ړیدو پیغلی

جار دی‌شم‌لوگی دی شم حیااوله‌عفت څنی
پیاده او سی‌تل ای د(کاوون) د امیدو پیغلـــی

# توره شپه وه




توره شپه وه غداری وه لوتو ل وو
توره شپه وه دردول وو سو زول وو

توره شپه وه دليو ا نو پا چا يی وو
توره شپه وه خير ول وو دوبول وو

• • •

توره شپه وه دبنکلو آ با دو ل وو
توره شپه وه د جونگړو ورا نولوو

توره شپه وه وطن خلکو ته زندان وو
توره شپه وه دسرو وينو تو يول وو

• • •

توره شپه وه توری وريځـــــی غوړيد لی
توره شپه وه پاکی هيلـــــــی سو زيدلی
توره شپه وه «ديوان» مست وو له غروره
توره شپه وه بلا گا نـــــــــی نخيدلی

• • •

توره شپه وه دمظلو م په بر خه غم وو
توره شپه وه ظالما ن وو ا و عيشو نه

توره شپه وه مز دور ستړ ی و وو له کاره
توره شپه وه با دارا ن وو ا و حکمونه

توره شپه وه پکی لوږه‌اوخواری‌وه
توره شپه وه پکی غلاوه، لوټماری‌وه
توره شپه وه لوټول وو چـــورول وو
توره شپه وه پکی گیډه دیندار ی‌وه

* * *

توره شپه وه لیو نتو ب دلیونووو
توره شپه وه تور حکمو نه دکنهو وو
توره شپه وه‌دستم وریځی خوری وی
توره شپه وه دورانو نـــــه د تیارووو.

* * *

خو : دتوری شپی له زړه نـــــه توفان پاڅید
سرو څپو یی راچپه کړ ل تو ر قصرونه
دسلطان ماڼی یی ورانه کړ ه له بیخه
په غږ مبا شو ل له غضبـــــه خرتهانکونه

* * *

دنجات کوتری جگی شو ی هـوا ته
دد ښمن په کور یی یوو ړ ل یر غلونه
راچپه یی کړ ی دظلم سختـــی باری
اورول یی له هوا نه پـــــر ی اورونه

* * *

خونړی سکو ت ځای: پریښود زلز لو ته
وطن‌خلا صه کړله غیږه توفا نو ته
دښپا هی دبرچی خو که په خـلا شوه
ویل یی ټینگ شه اوس دښمنه گوزاروته

ماکتل چی استبداد له پښـــو پریووت
ماکتل چی توره شپه په تیر یدو شوه
ماکتل چی لمر راو خو ت رڼا یی شوه
ماکتل چی تاریکی په ور کیـدو شوه

• • •

دوطن له ښو نه ما تی زو لنی شوی
دپیړ یو اسیرا ن بند نه آزا د شو ل
وچی شو نډ ی شوی په مستـی خندا خلا صی
دردیډ لی زوریډ لی خلك ښا د شو ل

• • •

هری خوانه چیغی پور ته شو ی دخلکو
په خندا خندا ور ګډ شو ل سره سیلاب ته
په هورا هورا یی غرو نه په لړزه کړل
پاخیدلی دی ملاتړ دانقلاب ته

• • •

جوړ و ی دګران وطن و را نـــی ویجاړ ی
ټو کوی په سپیرو دښتو ســره ګلونه
لوږه تنده بې وسی و طن نــه باسی
ور کوی غمجنو زړو نو نه غمونه

• • •

بریالی دی وی توفان تو فان دخلکو
پر تمین دی وی دورا ن ، دوران دخلکو
تل دی لوړوی سوز بیر غ دزیار ایستو نکو
وی خلا نده دی زمان زما ن د خلکو...

کابل پوهنتون
۲۴ر۲ر۱۳۵۷

# دخلکو حماسه

مادژو ندیوو لولو نوی آ هنگ وګنه
مادز ړو ز ړو فکرو نو سره جنګ و ګنه
زه دخو بونو نغمه نه‌یم نه‌دخیال بد له
چې ویده زړو نه ویښو ی ماداسې شر نګ وګنه
زه شمه نه‌یم‌چې‌ژړیږی او دمرګ خواته ځی
چې په خنداپه اور ور دانګی ما پتنګ وګنه
زه دګلو نو غنچه نه یم چې امیل شم چاته
چې دظا لم ستر ګی‌راباسی ماخدنګ و ګنه
چې له تیاروسره جنګیږ ی ا و ډیوی بلوی
پد غی لا ر کی می په خپلو و ینو رنګ و ګنه
ماته‌له هرخه نه‌نژدی دی خپل هیواد او خلك
هیواد زیار ت او ماددی زیارت ملنګ وګنه
سری سینی چې تودو ی و ینې په جوش راو لی
زماجذبه‌د اورنی وینی غور ځنګ وګنه
زما غزل او ترا نه ده حما سه‌د خلکو
زما سند ره‌دولس غیرت او ننګ و ګنه
که دوطن دآبادی لار کی مې سر ور نه‌که
بیا مې«کاوو نه» بې‌و جدا نه او بدرنګ و ګنه

لقمان

۶ر۱۲ر ۱۳۵۵

# داهم مورده

دسرك غاړ ی ته سپیرو خاو زو کی
په خاورو دو ړو او گر دو کــی پټه
ځان یی تاو کړ ی په زاړه‌تیکری کی
دتر خه ژو ند په اندیښنو کــی پټه

* * *

کمیس یی څیر ی لار ی لا ر ی ښکار ی
چاودی پښی یی له گردو نــــه ډکی
دزړه په‌کور یی د دردو نــــو تو فا ن
نمجنی ستر گی یی غمو نــــه ډکی

* * *

یونیم کلن ماشوم یی غیږ کـــی ویده
دناجوړ ی په سرو لمبو کــــی سو ز ی
نه یې دوانه یی کا لـــی نــه ډوډ ی
مور یی ژړیږ ی په دردو کـــــی سوزی

* * *

په چورت کی ډو به او حیرا نــه ناسته
زوی‌یی د مر گ سره لو بیږ ی ور ته
په آرزو گانو یی لمبی بلـــــی دی
دزړه تنکی گل یی رژ یـــږ ی ورته

لاس یی نیو لی دسرك پـــه لوری
گو ندی که خوك ور ته خیر ات ورکړی
گوندی پیدا شی خو ك زړه‌سوا نده خلك
بنکلی ماشوم ته یی نجات(!) ورکړی

• • •

خوك ورته گوری خوك تری مـخ اړوی
خوك په خندا ، خندا تیر یـــږی ورنه
خوك ورته وایی «موری خدای‌دی درکړی»
خوك ورته گوری خوك تری مـخ ورنه

• • •

خوخوكلا خاند ی مسخری پر ی کوی
وایی چی «څه کړی داوز گـاره‌بنځه (!)
بی ځایه ناسته دسر ك غـــا ړی ته
دغه کم عقله او بی کـــا ر ه بنځـه »

• • •

اخر خو داهم ددی خاوری‌لورده
دا دردیده لی او غم جنه بنځـه
دا هم انسانه ده دنو رو غو ندی
داربړیده لی او درد منه بنځه

■ ■ ■

دغه خو هم د چا نا مو ســـ یادیږی
څو به دغم په تال زنگیـــږ ی داسی
څو به دیوی مړ ی ډو ډ ی پـــه تمه
په‌سپیرو خاو رو کی سو لیږ ی داسی

دالو یه شوی د در دو نـــــو غیږ کی
دا خو شحا لی او خندا نه‌پیژنی
څوانه څوا نی کی یی ویښتـــــه سپین شو ی
داد نا زو نـــــو د نیـــــا نه پیژ نی

* * *

دا نا مرا ده دبز گر ښځـــــه ده
دڅ و ند ناخوا لو دردو لـــــی ده دا
دځوانی مر گ میږ ه غمو نـــو سو ی
څو ظا لما نو زو ر و لـــــی ده دا

* * *

څو چی په شپو شپو یی مـز لکړی ده
دښار کوڅو ته یی پنـــــاه راوړ ی
غو ښی یی نو رو شپیلو لـــــی تری نه
دی‌لالهند ی تشه ســــــا ه راوړی

* * *

اوس نو په ښار کی گدا یی ته ناسته
دزړه ز خمو نه یی سو ز یږ ی ورته
یو خوا دکور اود ډو ډ ی اندیښنه
بل خوا رنځور ما شو م ژړیږی ورته

لغمان

۱۹ــ حوت ــ ۱۳۵۵

# تیاره‌و ختونه

ستاله تورو سترګو چار شم راکه بیاخواږه جا مو نه
اوز دمینی کړه راپورهٔ ی چی تاوده می‌شی‌رګونه
خماری سترګی را واړوه چی می ستر ګی شی روښانه
لږ په مینه راته ګوره چی می‌لری شی غمو نــه
ولی دو مره بی‌و فاشوی په‌غمونو کی دی هیر کړم
کړل‌دی خا ورو سره خاور ی زما ښکلی ارما نونه
جناز ی دآرزوګانو می داو ښکوسره څاځي
دتور بخت تورو تیارو کی می ایر ی شول امیدونه
تنکی مینه می په‌زړه کی‌په‌سلګیو باندی سره ده
څکه خو لی ته‌راروا ن دی دسلګیو کاروانو نه
راشه بیا په مینه مینه در قیب په‌سر کړه خاور ی
دسو غات په‌نا مه‌راکه دسر کو شو نڅو لالو نه
چی‌زما زړه یی بندکړ ی‌دخلاصون امکان یی نشته
دغه توری‌زو لنی دی که دتو رو زلفو و لو نه ؟
ای زما دزړ ګی سره راشه خواته‌می په مینه
چی له او ښکومی جوړ کړی ستاد غاړی امیلو نه
د(کاوون) دژو ند ډیوه یی راشه‌لری داتیاری کړه
دسپین مخ په‌شغلو سپین کړ ه زما تور تیاره‌وختونه

**لغمان ۸ر۷ر ۱۳۵۳**

# دامخموری ستر گی

ستر گی دی دوا ږه آدمخـو ری شو لی

ز خمی زړگی ته می منگوری شو لـــی

زما پهزړه توره تیاره گــــېږه شو ه

چی ستا په مخ زلفی سمسور ی شو لی

قسم د ستا په تورو ښو آشنا

دژ و ندو ن شپی می داسی توری شو لـــی

اول دی کړ لی دو فا خبر ی

او س دی دعشق خبری نور ی شو لی

ښکلی ! چی مخ دی له مـــــا وگر ځاوه

دامیدو پیا لی نسکوری شو لی

**لغمان**

**۱۷ـ حوت ـ ۱۳۵۰**

# د مشرق گلشن

ته زما دزړگی سر یی
ته می گران افغانستان یی
ای وطنه ماته گران یی
ای وطنه ماته گران یی

* * *

ته می کورته می زانگو یی
یم په تاکی زیږید لی
کړی تاکی می خاپوړی
ستا لمن کی لوبیدلی
یم په تا کی پیدا شوی
یم په تا کی روزل شوی
ته جغه یی د ملکو نو
ته سر تاج دټول جهان یی

ای وطنه ما ته گران یی
ای وطنه ما ته گران یی

ستاپه غیرږ کی روزل شوی
ډیر پیاوړی غیر تو نه
ستاله خاوری پورته شوی
ډیرسر کشه توفانونه
دلته تل دزور گیرا نو
اوبه شویدی زو رو نه
هر بچی دی غیر تی دی
افتخار دلوی افغان یی

ای وطنه ماته گران یی
ای وطنه ماته گران یی

• • •

دنړی له تو فا نو نو
هسکه غاړه یی و تلی
سردی هیچاته ټیټ ندی
په‌غیرت یی اوسیدلی
چاچی تاته بد کتلـی
بیا خپل سریی‌دی‌خوړ لی
دمشرق ښکلی گلشنه
تل تر تله دی ودان یی

ای‌و طنه ماته گران یی
ای‌و طنه ماته گران یی

لغمان ۲ر۸ر۱۳۵۳

# دعصر ځوان

چیغه دغیرت یمه دنوی عصرځوان یمه
پو هه‌مې وسله ده خرافاتو سره‌وران‌یمه
زړه کې مې نخیبزی دو طن او انقلاب مینه
سربه تری قربان کړم غیرتی‌زلمی افغان یمه
لار دپر مختګ مې په خځلوبند یدی نه شی
سین یمه سیلاب یمه ځپه یمه توفان یمه
ځوانه عقیده مې له‌پولا دو نه هم‌کلکه ده
زه دځوا نی لاری دسختیو قهر مان یمه
ماد بی دردانو د مستی‌دنیا تمه بوله
زه دخپلو خلکو د در دونو تر جمان‌یمه
اوښکه دیتیم یم اسو یلی د مز دورانو یم
کور دظا لما نو ته سور تند ر دآسمان یمه
ډیری کړ ی خو لی مې په‌سوکانو سمی‌کړیدی
زه دو چو دښتو دنګو غرو نو پهلوان یمه
لاره دشر ف او افتخار د خلکو لاره ده
ځکه بی‌پروا همد غه لاره‌کی روان یمه

**لغمان**

**۱۰ر حوت ۱۳۵٦**

# د پنجشیر سین ته

ای دپنجشیر لو یه او مستـــــهسینه
بیا دی سینه کی توفا نو نـــــه خوځی
بیادی خیره له قاره خـــــړه ښکار ی
بیا دی پهزړه کی کوم غمو نـــهخوځی ؟

* * *

چاته په قار یی چا ته ســــــر ښو روی
چاته غړ مبیږ ی چا ته ز و ر ور ښیی
چاته غوغا کوی او چا تـــــــه ژاړی
چاته د مستو ځپو شـــــو ر ور ښیی

* * *

چی دو مره تند او توفا نی روا ن یی
چی غور ځنګو نه دی و طـــــن ښوروی
چی هره چیغه دی سکـــــو ت ماتوی
چی هره منډه دی قـــــو ت زیږ وی

هرمخپه دی دغضب خپیره
هره ناره دی دژ و نــــدو ن سندر ه
هر شور ما شور د ی داو لس حماسه
هره سندره دی د یـــــو ن سندره

* * *

لههری تیږ یسره ســــــــر جنگو ی
هری د بری ته جزا ور کــو ی
په توره شپه کی د توفانمرغهته
زیری دفتحی دسبا ور کو ی

* * *

پنجشیره زړه می لیو نی غو ندی شو
ستا دمو جو نو آ شنا یــــــی غوا ړ ی
لــدی خامو شه او بی شـــوره ژو نده
نور نو بیلیږ ی جدا یـــــی غواړ ی

* * *

ستا دکړی لهبیســـار ی شوره
زما مغزو نو ته هم شـــــو ر ور که
دی لا لهنده لیو نیز ړهته می
د یو ی مستی چیغی زو رور که

د هندو کش د جگو څو کو زو یه
هره قطره کې دی تو فـــان وینمه
ستاد هر شا څکی پهروښا نه زړه کی
دخپلو هیلو رو ڼ جـــهان وینمه

* * *

راځه چی ښکته ابا سین تــه یو سو
د ستـــــــر آمو د تو فا نو ترانه
دغه دژو ند اود تکـــــــل سندر ه
د ا دهلمند د غــور ځنگــو ترانه

* * *

را ځه چی مست ګرولیونـــی اباسین
ذاتو فا نی او خو نـــړ ی اباسین
داد ننگو نو او جنگو نـــو راو ی
دا تاریخی او پخوا نـــی اباسین

* * *

داد کو کچی دتو فا نو نـــو آشنا
داد کنړ دسیلا وو نـــــو آشنا
داد پا میر او هندو کشـــــس دغیږی
دسترو سترو قدر تو نــــــو آشنا

ښو چې آزاد کړي د پیړ یــو اسیر
ښو چې راو یښ کړي دعمر ونو ویده
ښو چې دژو ند جګړي ته‌وهڅوي
په شپو ښکیل شوي دکلونــوویده

• • •

ښو چې په ښکته پور ته لوي وطن کې
دنوي ژو ند ، نوي نغمـــې خوري شي
ښو چې دسري میني له سرو غمیو
په سپیرو دښتو سري شغلې خوري شي



ګلبهار

۱۳۵٦ر٤ر۲

# سوز

سوز می دز خمی زړ گی رنگینی ترانی شو لی

و ینود غمجن زړه نه می ډکی پیما نی شو لی

زړه زما یواز ی خو دردو نه بی حسابه دی

څکه دغمو نو راته جوړ ی خزا نی شو لی

آه که له خو لی باسم په څپیړو وهل کیږ مه

واړه حسرتونه می په‌زړه کی افسا نی شو لی

سوز لرمه ،دردلرم په‌زړه کی می سور اور بل دی

جوړی ربړ یدو ته زما ډیری بها نی شولی

دی خو نخور نظام کی‌ژوندمعنی دژوندون نه لری

وینو د مظلوم نه ډکی ډیر ی میخانی شو لی

**لغمان**

**۲۲-٤-۱۳٥۱**

# ای زما ښکلی وطنه

ستاپه مینه باندی پایم ای ز ما ښکلی وطنه
ای ز ما د سترګو نوره زما څا نه زما تنـــه
پهرګو نو کی می ګر ځی ستا د پاکی مینی وینه
ای زما دژ و ندسنګره ای دلوی او لس بد نـــه
زړه می ستاپه مینه مست دیسر می ډك ستاله غروره
سر او ما ل میدر نه جار شه ای زما ښکلی ګلشنه
دایشیا جګه شمله یی هیڅا نهیی ټیټه کړی
هیڅ زور ګیر نیولی نده په آسانه ستا لمنه
هره پیڅه دیَ جنت دی هره ټرهدی ختن دی
ستا سپیره سپیره ډاګونه ماتهګران دی له عد نه
تهیی څاله دبازانو تهیی کور د باتورانو
هرز لمی دی غیر تی دی هره پیغله دی تورز نه
هره تیږه دی سنګر دی هرهتاله دی مورچه ده
ستا په دنګو ، دنګو غرو نو دویاړ نو رڼا پلنه
ژوند او مر ګ می دی پهتا کی ته می کوریی ته می ګوریی
زه( ګاوو ن) در نهلو ګی شم ای زما ګرانهو طنه

**لغمان**

**۲۸ـ دلو ـ ۱۳۵٤**

# ددردونو دنیا

راشه لږ زما دارما نو نو د نیاوګوره
راشه دغمجنوامیدو نو دنیا و ګوره
تاچی می پهزړه داغونه کیښودل ګلونه شو ل
راشهدزړه باغ ته دګلو نو دنیاو ګو ر ه
تاډیری لید لی دخو بنیو دنیـــا ګانیدی
خیر دی یو ځل راشه دغمو نو دنیاو ګور ه
مینه می ایمان دی او کعبه می د ساقی ستر ګی
را شه د کعبی دګنا هو نو دنیـــا و ګور ه
ستا ستر ګی دغم پهژړا کلهلندی شو یدی
ستر ګو ته میخیرشه دږنډو نو دنیاو ګوره
تهپه بی دردیو کی له درده نـا خبره یی
راشه خهشیبهخو د دردو نو دنیاو ګـــو ر ه
وګوره چیخه می په ز خمیزړګی تیر شو یدی
زړه کی می میلمه شه ددا غو نو دنیاو ګوره
دلته بی له مینی او وفابل څه مو ندی نهشی
را شهد(کاوون) دار ما نو نو دنیاو ګو ر

**لغمان**

**۱۹ـ دلو ـ ۱۳۷۵**

# ناكامەئارمانونە

لكە دچاچی پەژر لو ستر گیسری پاتی شی
یا د یتیم نا امیدە او بنکیچیخوری پاتی شی
یاد ناکا مو مینانو لە ناکا مـی مینی
څو دردوو نکی او غمجنی افسانی پا تی شی
یاد پتنگ نیمگری مینە چی پـە اور وسوز ی
د ډیوی خوا کی تری سری سری ایری پاتی شی
داسی می زړە کی شول ناکا مەارما نو نەپاتی
لەخوږی مینی شول تر خە تر خەیادونە پا تی

* * *

هغه خوږه مینه چی زړه کـــی نخیدله راته
هغه شغلەچی تل مدام بە ځلید لە را تـــە
هغه نغمه چی بە می روح ور تە نڅا کو لە
هغه جذبە چی بە سینە کیدرزید لە را تـــە
هغەوږ مە چی بە یی زړه تە تازگی ښښلە
لە نا زە ډکە بە پە مینە ناز ید لـــە را تە
اوس رانە لری لری گر ځی نا آشنا ښکاریږی
دوفا نښـــە پکی نشتە بیو فا ښکا ریږ ی

غوټی د هیلو غوټی پاتی شو ی ګلونه نشو ل
زړه نه بهر هغه نیمګړ ی ارما نو نه نشو ل
دژو ندون شپی اوور ځی تیر ی شو لی هیری شو لی
خو مانه هیرهغه ترخه ترخه یادو نه نشــــو ل
ډیری سیلی دجفا را غلی پهٔ تنګی مینه می
خو می پهٔ زړ ه کی مړه دمینی سره اورو نه نه شول

څو چی ژو ندی یم دایادو نه به پهٔ زړه کی ساتم
دچا جفا دچا ظلمو نه به پهٔ زړه کی سا تــم
* * *
چاسپیلنی غو ندی لو ګی کړ ل امیدو نه زما
چاتورو خاو رو لاندی پټ کړ ل ارما نو نه ز ما
چا می زړګی پهٔ بیرحمی ســــره ټوکرټو کر که
چا بیاله خاورو نه کړل ډک دزړه زخمو نه ز مـــا
چا دجفا څپیړه راکړه مخ یـــی شین که راته
چادخزان پهٔ سیلی مړاو ی کړ ل ګلو نه ز مـــا

خوزه لا اوس هم پسی ګر ځمه آشنالتهوم
دتیاره ژوند تورو تیارو لره رڼا لتهـــو م

**لغمان**

**۸ـ دلو ـ ۱۳۵۴**

# دعقاب ځاله

له‌سر نه تیرزلمیا ن وطنه تـــا ځنی جاریږی
نو څکه ستاپه‌لار کی قر بانی ته هو سیږ ی
خمونه دشرابو یی بیخی مستوی نه‌شی
خوستاد پا کی خاور ی په‌یوه ذره مستیـــږ ی
که‌پیغلی که زلمی دی ستاد ویاړ سندری وایی
تاسا تی په تـــا ویاړ ی ستاپه‌لارکی به‌مړه‌کیږ ی
ته خاوره دغیر ت یی ته یی‌کور دنهضتو نو
آواز د ننگـــک غیرت هرو خت لتانه را جگیـــږی
ډیر لوی قهرما نان دنهضتو نو لاربنوو نکی
ستاغیږه کی‌لوییږی ستاپه‌خاوره کی غټیږی
یما ځنی تر ننه ته خپلواك یـــی‌اوسیدلی
په ویاړ اوافتخاردی د تاریخ پا ڼی ډ کـــیږی
ته‌ځا له دعقا ب یی ته‌وطن یی‌دزمریانو
هرخوك چی تا ته بدگوری نو ستر گی‌یی ړند یږ ی
ستا شاړی‌ستا کمری ستاپراخه‌لویی دښتی
رڼا دنوی ژوندکی ټول په‌سرو گلو پټیـــږ ی
(کاوون) درنه قربان شه ای زماگرانه وطنه
ستا مینه می په‌زړه کی په مستی مستی نڅیږی

لغمان ۲ر۵ر۱۳۵۳

# سپرغی

بیا می په زړه کی مینــــــه نخیږی
بیامی رګو کی وینه توده شـــــوه
بیا می مغزو کی د رزم شـــو ر دی
ستر ګی رڼی شو ی هیله می سره‌شوه

• • •

دلته چی ګور م زما وطـــــن کی
زلمو جګ کړی ، پر چم د خلکـــــو
دلته چی ګور م په دی هیـــو ادکی
زړو نه کړیږی په‌غم د خلکـــــو

• • •

دلته چی ګور م په توره شپـــه کی
د سرورزمو نو سپر غی ځلیـــږ ی
دلته چی ګور م تور ی چـــو پتیاو ی
د تو رو کندو ، تل ته غو رز یـــږی

• • •

دلته‌چی ګور م او ســـــــر ا جګیږی
له خړو ځمکو سره بیر غو نـــه
دلته چی ګور م راپور تـــــه کیږی
له‌سړو خاو رو تاو ده او رو نه

په کار خانو کې ، په کرو ندو کې
دیوی نوی لاری آغازدی
خلك و ینې شوی مبارزه ده
نوی جنون دی ، نوی آوازدی
* * *
ما نې د ظلم په لړزیدو ده
د ستمگر و ستر گې ژړیږی
خان که خاین دی ، په ویر اخته دی
تن یې رپیږی ، زړه یې درزیږی
* * *
توفان دخلکو په مخه درومی
خو چې چپه کړی دظلم باری
خلك آزاد کړی له زنځیرونو
خلاصی کړی نوی دژ و ندون لاری
* * *
وطنه پاخه ولسه و ینې شه
لار مو یوه ده منزل مو یو دی
دو که و نه خوری ، د دښمنانو
هدف مو یودی تکل مو یو دی

ځی چــی ور دا نګو پــــه دښمنا نو
ځی چی ور خیږو په سنګرونو
په وسپنیزو جګو بر جو نو
په دی ماڼیو په دی قصرو نــــو

* * *

ځی چی راکوز کړو (سلطـا ن) له تخته
ځی چی نسکور کړ و دزور تختو نــه
ځی چی د خلکو پښو تـــــه کیږ دو
دسرو غړ واند ی ، زر ین تا جو نــه

* * *

خو چی پوره شی ، ار مــــان دخلکو
خنداکی ډو ب شی جهــــان د خلکو
خلك حاکم شی ، په خپلــــه خاوره
په وطن راشی دوران دخلکو

**لغمان**

**۱۲ـ۲ـ ۱۳۵۲**

# داوبنکو متاع

خومره چې مې زړه کې ډير غمونه شول
هو مره دردوو نکې ستا ظلمو نه شول
خومره چې مې نياز دميني پورته لاړ
هو مره ورسره ډير ستا نازونه شول
ماخودې په مينه باندې سر کيښود
تا سره پيدا نور هو سو نه شول
ما مې خپل معصوم زړه درته وړاندې که
ستا په ماپيرزو تر خه يادو نه شول
تا چې دجفا په غشو وو يشتم
جوړ مې په زخمي زړه کې ډنډو نه شول
اوبنکې مې له ستر گو ځي خورې ورې
بل مې په سينه کې سره اورونه شول
زه خو بې له او بنکو متاع نه لرم
څکه درته هير زما سوالو نه شول
تاچې مې سپيڅلې مينه هيره کړه
خود مې خاورو لاندې اميدو نه شول
ماته زما پاکه مينه هر څه ده
خير که تا ته گران سره اولالو نه شول
تاچې د(کاوون) په هيلو وخندل
زړه کې يې تازه دغم داغو نه شول

# دعقرب د دریمی دشهیدانو یاد

تور نظام دااستبدادو توروختونه

سوزیدل پکی دخلکو ارما نونــــه

هری‌خواته دستم‌تیاری خوری وی

هر قدم کی دفریب اوچل داموئه

تخت او تاج دپرگنو پەوینوسورو

لەسرووینوډکیدل‌دعیش جا مونه

آسما یی ښکتەکتل لەډیره شرمه

دخیبر په سر پراته دغم بارونه

دآموسینه کی وینی خو تېید لــی

اباسین تەیی‌ویل دزړه رازو نــه

خوپدی تورەتیاره داستبداد کی

چی په زړونوکی اسیرو وفریادونه

دکابل لهزړه نهپورته سور توفان‌شو
چې‌خپو یې‌لړزول شاهي‌قصرونه
دوطن‌پیغلی،زلمیان‌سره‌راټول‌شول
سره‌یویې کړل خواره‌واره‌لاسونه
مرگني‌سکوت‌یې‌مات که‌په‌وطن کي
اورني‌شول خفه شوی آوازونه
دسلطان په زړه دمرگ‌تبه‌خوره شوه
په‌ظلمو باندي‌یې‌سم‌کړل‌سره‌اوړونه
دوطن دمور لمن په‌وینوسره‌شوه
دکابل لهزړه‌نه‌پورته‌شول‌دودونه
هردیوال هره‌کوڅه‌په‌وینورنگ‌وه
رنگینه شول‌په‌سرووینو‌توروا‌ټونه
خوداسري ویني دځوانوشهیدانو
وچې‌نه‌شوي‌ترینه‌جوړشول‌توفانونه
څوچې‌ورانی‌یې ماڼي‌داستبداد‌کړي
شول پوره‌دشهیدانو ارمانونه
اوس لدی‌سپیڅلو وینوټو کیدلی
په‌وطن کي دآزاد ژوندون گلونه

**کابل**

**۱۳۵۹ ۷ر۳۰**

# ښکاروم

په خوب کی آشنا تا ته خپل رازونه ښکاروم
ګیلی درته کوم دزړه دردو نه ښکا رو م

ننکی مینه می وسوه ستاد هجر په‌سره اور کی
نو څکه اوس دسوی زړه دودو نه‌ښکاروم

دشعر ښکلی تار کی څیلو مه آرزوګانی
ستا غاړی ته جوړ شوی امیلونه‌ښکاروم

قسم دڅوانیمر ګو آرزو ګا نوپه ایرو می
سوز لو دجفا ته سره اورونه ښکا رو م

که‌و یښی او که‌ویده یم ستا یادو نه راسره دی
له تا سره لګیا یم فریا دو نه ښکار و م

نه‌خوب نه می آرام شته نه‌په‌ژوند باندی پوهیږ م
غمجنی خا طری او تیر یادو نه‌ښکارو م

په مخ می رابهیږ ی تږمی‌اوښکی سیلاوو نه
(کاوو نه) خپل آشنا ته توفانونه ښکاروم

لغمان
۲۶ـ ۲ـ ۱۳۵۳

# زه ما وطن

ډیر رابا ندی گران دی
دا ښکلی زیبا و طـــن
سر به تری قربان کړم
داوطن ز ما و طـــن

* * *

داد شجاعت زا نگــو
دادننگیالانو کــور
دغه‌د غیر ت ځا لـــه
دغه دز مریا نو کــو ر
پالم یی په و ینو تـــل
دا می د بابا وطـــن

* * *

داد خپلوا کی سمبو ل
داد حر یت مشـــا ل
داد آزا دی لاربنـــو د
داد ننگ غیر ت مشا ل
ښاد دی‌وی آباد دی‌وی
تل دی‌و ی رڼا وطـــن

سر به تری قربان کړ م
دا وطن ز ما وطـــن

لغمان

۷ـ ۱۲ـ ۱۳۵۲

# زیــری

ملګرو زیری دننګو نو زیری
دبریا لیو ارما نو نو زیری
وطن آزاد شو زو لنی ماتی‌شوی
دسره توفان دسروموجونو زیری

* * *

داستبداد ما نی نسکوره شو له
دتجاو ز بر جو نه و نړید ل
ښامار لاهو شو دتو فان څپوکی
د مستبد قصرو نه ونړ یدل

* * *

ښه شو چی ختمه شوه د ظلــم لوبه
ښه شو آزاد شو ل درد ید لی خلك
ښه شو چی خلا ص شو ل لــه اوږ دو رنځو نو
داد پیړ یو رنځید لی خلك

* * *

ښه شو چپه شوه دکو نګا نـــو ځاله
ښه شو سپیره شوه د دیوا نو خونه
داد ظلمو نو فسا دو نو زانګو
داد وطن د دښمنا نو خو نــــه

وطن دخلکو شو خپلوا ك شو ل خلك
دښمن د خلکو مختور ن پا تـــی شو
دتورو شپو تورو تیارو پیره‌دار
سوی ستی او لوغړ ن پاتی شو

* * *

وطنه پاځیږه لو گی دی شمه
ورځه پر مخ نوی ژو ندو ن ته ورځه
نور دی له پښو نه زنځیرو نــه مات شول
دلویو هیلو او ښتون تــه‌ورځه

* * *

ورځه دنوی ژو ند په نوی لاره
دزلز لو او توفا نو وطنه
بیرغ او چت که د مرام مانی ته
ای دبازانو او زمرو وطنه

کابل پوهنتون

۸ــ۲ــ۱۳۵۷

# خنــگه به‌و خاندم

زه دگلونو شاعر نه یم گلان نه ستایمه
مانه‌شعر ونه دگلدان‌او گلخا نی مه غواړی
زه دسپیرو دبنتو اغزی یم‌چمن‌نه پیژنم
مانه دگل او د گلپا نو ترا نــی مه غواړ ی

* * *

له ما نه تمه دهو س اود خندامه کوی
زما له‌زړه نه‌وینی شاخی خندیدلی نه شم
دا بی احسا سه خندید ل ما ته ژړا راو لی
زه دبی دردو په خو بنیو خوښیدلی نه شم

* * *

زه هم انسان یم انسانانو ســره مینه لرم
خپله‌خوښی‌د انسانانوپه خو ښی کی‌وینم
څوك چی ژړیږی زه دردیږ م ،زه‌ژړیږم ور ته
زه می خندا دمظلو ما نوخوشالی کی‌و ینم

ښنګه بهٔو خاند م چی هره خوا ژړاوینمه
ښنګه بهٔو خاند م چی شاو خوا ظلمو نه کیږ ی
ښنګه بهٔو خاند مچی هره خوادوینو بوی دی
ښنګه به وخاند م چی هرهٔور ځ مرګو نهٔکیږ ی

* * *

یو خواته ګورم خلك ژا ړ ی د ستم له زوره
بل خواته وینم خو شالی د ی‌او جشنونه کیږی
یو خواته ګور م انسانا ن پهٔخپلو وینو کی ډوب
بل خوا ته وینم پهٔسرو وینـــو اتڼو نه کیږ ی

* * *

خیر که شاعر یم خو خندا تهٔمی‌خو لهٔنه جوړیږی
داسی محیط کی خو قسم د ی خندید لی نهٔشم
چی می په خلکو دغمو نو بارانونهٔاوری
زه هم انسان‌یمه بی غمهٔاوسیدلی نهٔشم

* * *

یابه دځان پهٔوینو ستره حما سهٔولیکم
یابه په خپلو چیغو پور تهٔکړ م توفان دخلکو
یابه قربان شمه دخلکو د خوښی‌په ار ما ن
یا به دسر په بیه و ګټم ارمان‌دخلکو

کابل ـ مخفیګاه

۱۳۵۸ر۸ر۱۶

# انقلابی شهیدته

ای میړ نیه ننگیا لیه قهرما ن شهیده
دانقلا ب دمقد سی لاری ځوان شهیــــده
ای دژو ندی احساس په گر مــو ولولو مینه
دژ و ند او مرگ په معر که کی پهلوان شهیده
دسر په بیه دی نظام د سو کـا لـی وگټه
ځان دی په دغه پاکه لار کی که قربان شهیده
تادظالم او مستبد مانی کړ ی دړی وړی
ته د ظا لم په کور سور تندر دآسما ن شهیده
ځان دی قربان که دمظلــــو م دهو سایی په خا طر
موږ ته دی راوو ړ نوی نظم ار مغان شهیــــــده
تاسری گیډی دسرو گلو نو سو غاتو نه راو ړل
مــــو ږ ه بــه هــم ږدوستا پهقبر سره گلان شهیده
ته خو مړ نه یی ای دننگ او د غیرت مثاله
ته به ژو ند ی یی ځو ژوندی وی یوافغان شهید ه
په توره شپه کی دی کړی بلی دسروینو ډیوی
که ته شهید شوی خو پوره د ی شو ارمان شهیده
ستا په سوری سوری سینـــه رنگین تیر می قسم
چی به نابود کړم ستاد فکر دښمنا ن شهیـــده
تابه ستایمه ستاپه نوم به افتخار کومه
ستاد مرا م خلی به زه کړمه و دا ن شهید ه

# دغاټولوجنډې

ځو دژو ند په میکده کې رندا ن خوځي
زما زړه کـې به دهیلو کاروا ن خو ځــــي

ځو سا قي شته ځـــو خمونه‌د شرابو
خا مخـــا به‌په کوڅه کې مستا ن خو ځي

گمان مه کړه چې دبحر زړه آرام شو
د آ را م بحر دلا ندې تو فان خو ځـــي

چاو یل چې چمن لوټ بلبــــلان لاړل
چمن شتـــــه بلبلان شته ،بو راگا ن خو ځي

بیابه زیرې درنگین پسر لـــــې وکړي
دا نسیم‌چې نن شکید لی گر یوا ن خو ځي

بیابه پورته شي جنډې د سر و غاټو لو
په وچ‌ډاگ به دگلونو تو فا ن خو ځـــي

دزا هد زړه به له ډیره قـــاره‌وچوي
په هر لوري به مستي او مستا ن خو ځـــي

**لغمان**
**۱۳ـ دلو ـ ۱۳۵٦**

# ملگرو

ملگرو ! پام کړی وار خطا چې نه شی
له خپل سنگر نه را په شا چې نشی
شپه تیر یدو نکی ده سبـــا راخیږی
گوری تیاری سره پخـــلا چې نشی

* * *

دغه دتشو پا غو ندو اتلا ن
ځان زورور گڼی خو زور نه لری
داد شرف اودو جدا ن سوداگر
سر کی غیر ت پهزړه کی اورنلری

داد وحشی ستم و حشی نوکران
ستا سو په مخکی دریدلی نشی
داد پردو پهلاس جوړشوی بتا ن
ستاسو سیلاب ته تینګیدلی نشی

* * *

بیادو طن ستر ګی دی ستا سو لور ته
پاڅیږ ی نوی هنګا مه جو ړ ه کړی
چی دستم قصرو نه ونړ وی
له برمه ډکه زلز له جوړهکړ ی

* * *

بی‌له جګړی نه بله چاره نشته

بی له رز مونو بله چاره نشته

لهقربانی او سر ښندنی پر ته
خلاصون له(دیو) او له(ښاماره) نشته

کابل ـ مخفیګاه
۳۰ـ۵ـ۱۳۵۸

# اوردە تندە

یە ساقی دزرگی سرەدك جامو نە راکوە
سو زوە می سوزوە می سرە اورونە راکوە
پەرگ رگ‌می شراب سم کرەوچی‌شونەی می تازە کرە
تول و جو د می پری خروب‌کرەدر یابونەراکوە
دا اوردە تندە می سوز ی‌داآرا م‌جنو ن می وژنی
پە کندول مـی‌چارە نە شی لوی متو نە راکوە
زرە می سور ،سر می بی شورە سترگی پتی لە خمارە
هلە ژر شە چـی دوبین م سرە لا سو نەراکوە
لەتر خو اوبو دی جارشم راکوە یی‌پروا مە کرە
دزا هد جنـت نە تیریم دوز خو نە را کوە
داغمجن زرە می کباب کر ە د شرابو پەسکرو تو
پخوانی دا غو نـە هیرشو ل نوردا غو نە را کو ە
میکدە کی می دیرە کرەارمانونە می‌پورە کرە
لەسر کو شونەو دی جارشم سرە لالو نە راکوە
ترهغە یی راکوە چی خود تا ك رگونە دك دی
خو زما او ستـاخوانی دی نو خمو نە راکو ە

**لغما ن**
**۱۳۵٦ر۸ر۲۹**

# هوزه شاعریم

هوزه شا عر یم خود خلکـــود رنځو نو شاعر
زه د محرو مو او لسو نو د دردو نو شا عر
زه دمز دور دسوی زړه دامسو یلو تر جما ن
زه دکار گرو او بز گـــرو د جنگو نو شا عر

* * *

زما سندره داو لس دو یښیـد و سندره
زما سندره دو طن د خو ځیـدو سندره
زما سندر ه دتوفا ن د ســـرو مو جو نو سرود
زما سندره د پاخون او رسیـدو سندره

* * *

هوزه شا عریم خود سپکو هوسو نو نه‌یم
زه دجونګړو تر جمان یم‌دقصرو نو نه‌یم
زما ار مان د زیار ایستـو نکـو دبریو ارما ن
زه دناو لو او خیر نـــو ارما نو نو نه‌یم

زه سور اغز ی یم دبیدیا دسو زیدلی غیرږی
زماو ږ مه په گلخانه کی دگلونو نده
زه بلبل نه یم زه مرغه یـــــم دتوفان دځپو
زما نغمه د فحاشیو د بـزمو نو نده

* * *

نه می له‌شعر نه امیل جوړ که‌د سلطان غاړی ته
نه می په عمر کی شعرو نه د ر باری ولیکل
نه می دشعر گو هر خیر ن که‌د ظالم په صفت
نه می شعر ونه د ستم د باداری و لیکل

* * *

دشعر وسله می جنگو لی‌ظالمانو سره
له‌بنکیلاك گرو زبیښاك گروخو ن خوارانو سره
په استبداد می‌دسکرو تهوگوزارونه کړی
تل جنگید لی یم دخلکو دښمنانو سره

* * *

تل‌به شعرو نه دانسان دشرا فت‌لیکمه
تل‌به زیار کښو انسانانو تـــه شعرونه وایم
تل به دشعر په‌ژبه ستا یمه د خلکو لاره
تل به درد منو ا نسا نانو تـه شعرونه وایم

**کابل پوهنتون**

۸ر۳ر ۱۳۵۶

# هیر می که

هیر می که او هیر می کـه
مه می یادوه نجلـــــی
زه د هو سو نه یـــم
مه می ز و ر و ه نجلـــی

* * *

زړه می شو له تیږی کلك
تا پسی در دیږ ی نـــه
شر نګ د زو لنو غــواړی
زلــفو کی تینګیږ ی نـــه

سر کی می غرور د عشق
زړه کی مې د مینـــــی اور
ستر گو کې جذ به د جنګ
مټ کی درز مو نو زو ر

* * *

ته دګلو پا نه یـــــی
زه یم سارا نی اغـــز ی
ته لکه تاز ه غو ټـــــی
زه یم بید یانی اغـزی

* * *

هیر می که او هیر می که
نه شم خپلو لـــــی تـــا
سر تر پایه غم یمـــــه
نــه شم خــند و لــی ټـا

**کابل ــ مخفیګاه**
**۲۸ر ۱ر۱۳۵۸**

# چـې ځـې

زړه مې په اور باندې سو زېږ ی چې ځې
په مخ مې او ښکې را بهېږ ی چې ځـې
ماد رقیب په حال خندا کو له
خو اوس په ما پورې خند یږ ی چې ځې
دزړه پر هار شو بې در ملـه پاتې
گرا نې ! اوس بیر ته تازه کېږ ی چې ځـې
غمو نه واړه وو تیت شـوی رانه
خو یو یو بیر ته راټو لیږ ی چې ځـې
زما دځوانو آرزو گانو غو ټـې
لکه د منې گل رژیږ ی چې ځـې
زما دزړ ه داوزر ما تـې بورا
بیا به اغز یو کې کړ یږ ی چې ځـې
جانانه گوره بې و فا غو نـد ی شوې
هیلې مې خاورو کې پټیږې چې ځـې
چې ځې نو زړه دې ځه په مخه دې ښه
خو ...دواړه ستر گې مې ړندیږ ی چې ځې
د(کاوون) لو ند گریوا ن به لو ند پاتې شي
بیا به په تاپسې ژړ یږ ی چې ځـې

**کابل پو هنتو ن**
**۲۰ـ٤ـ۱۳۵۷**

# وطنه ستا لپاره

وطنه ستا له پاره
اوستاد خلکو په نو م
دخواریکښ انسا ن دژو ند اود بقا په خا طر
دهر ناکس له خوانه
زه رټل شوی یمه
اود هر بی پته اوبی مغزه لــــه خوا
زوروول شوی یمه

خو په وطنه زما
زما دهیلو کوره
ستا دشریف انسا ن دژ و نداو دبقا په خا طر
هر څه منلی دی ما
زړه دردوو نکی ستو نز ی
ټو لی زغملی دی ما

* * * *

گرانه وطنه زما
زما دهیلو کوره
تابه دسر په بیه
اود خپلو وینو په رنگ
داسی رنگین کړم چی جها ندرته حیران پاتی شی
او په خپلو وینو به سمسو ر ی کړمه
دخواریکښ انسا ن

دهیلو دگلا نو
غوټی

کابل - مخفیگاه

۱۳۵۸ر۵ر۲۵

# تیر به‌شی

تیر به شی دا تور و ختو نــه تیر به شی
داد استبداد دورو نه تیربه‌شی
لنه‌ه به شی داپه و ینو ســره لاره
دادتوروشپو رز مو نه تیر به‌شی
وبه خاندی مړاو ی غو تـــی سری به شی
تیربه‌شی ساړه بادو نه تپر به شــــی
مات به دبتانو پو چ سرو نه شی
دا بت‌پرستی خو یو نه تیر به شی
مسته به خندا شی و چـــــو شو نړو کی
را بـــه شی‌خو بنی غمو نه تیر به‌شی
لمر د عدا لت به پلو شــــــی وکړی
تبنتی به‌لیوا ن ظلمو نه تیربه شــی
پام کوه ملگر یه !چی‌ستو مان نه شی
دادسختو شپو مزلو نه‌تیر به‌شی
بناد به شی آزاد به شی و طـن زموږ
ما ت به‌شی زنځیر بندو نه تیربه‌شی

کابل ـ مخفیگاه
۱۳۵۸ر۳ر۲۷

# دزندان حماسه

زما دلويو ارما نو ملگر يه
دزولنو اوزندانو ملگر يه
دتورو شپو په زړه کې رون‌مشاله
دسره هدف دسرو لمبو ملگريه

* * *

داستبداد سختی دی‌و ز غملی
خو بی غير ته اوبی‌ننگه نه شوی
ځان دی‌په هر خم کی‌ونه‌غورزاوه
خپل‌رنگ‌دی‌وساته‌بدرنگه نه‌شوی

* * *

ملگريه ستا له عظمت نه‌جار شم
داخوبی پته کاغذی رهبران (۱)
ستاله غيرت اوله ميړانی لوگی
داخود فروشه سيا سی تاجرا ن

* * *

ستا غير تی سر ما تيدل قبلوی
خوفر عونانو ته ټيټيږ ی کله
ته‌قهرمان يی تانه مرگ‌ويريږ ی
ستاپولا دی عزم ماتيږی کله

* * *

دجيلخانی دتوروشپو له‌زړه نه
زما غوږو ته ستا آواز را ځی
زړه می نخيږ ی وينی‌گرمی‌شی‌لا
چی ما ته ستا دزنځير سازراځی

---

(۱) مقصد امين او دهغه بانډدی.

ته په زندان کی حماسی جوړوه
زه به دباندی سره اوورونه کرم
ته د دښمن زړه کی لمبی بلوه
زه به‌وطن کی توفانو نه کر م

* * *

ته‌و یښوه خلك په خپلو چیغو
زه به دویاړ پرچم اوچت‌ساتمه
ته‌له بی پتو نه پردی لری که
زه به دخپلی لاری پت‌سا تمه

* * *

مایو سه نه شی ستاد هیلوتوفان
دلته مستی کو ی بتان ما توی
دغه دخلکو دغضبت خپی د ی
چی زولنی ،جیل او زندان ما توی

* * *

دابه‌د ظلم ما نی و نړو ی
دابه‌و طن ته آزای و ښښی
دابه‌و حشی ستم ته اورو اچو ی
دابه‌ولس ته سر لوړ ی‌و ښښی

* * *

بیابه‌نو ستاد پاکو هیلو غو ټی
خلکو ته و خاند ی گلونه به شی
ستادلا سو اود پښو زو لنی
دخاین غاړ ی ته دارونه به‌شی

کابل - مخفیگاه
۱۳۵۸ر۶ر۸

# دګلو توفان

راروان دی په‌وطن توفان دګلـو
غرورغوکی‌خوځی‌سورکاروان دګلو
دغاتپولوجنډی‌جګی‌شوی له ځمکی
غوړ ید لی‌په‌وطن الوا ن دګلـــو
سپیری‌دښتی‌په‌سروګلو ښا یسته شوی
راوریږی پری رنګین باران‌دګلو
په‌سروګلو پښی مه ږده چی‌ګناه‌ده
دشهیدپه‌وینورنګ دی‌ځان د ګلو
چی‌خپل‌سر یی دوطن‌په‌لارکی‌ورکه
قربا نی شو په ارمان،ارمان دګلو
سپیرودښتوکی‌یی‌وشیندلی وینی
له‌وطن‌نه‌یی که‌جوړبوستان د ګلو
تل دی لوړی‌وی‌جنډی‌د شهیدانو
همیشه دی‌وی تازه دوران دګلو

کابل ـ پوهنتو ځ
۱۳۵۹ر۱ر۶

# دمینی تورن

آشنا بنه شو چی تورن دستاپه تورشوم
پروا نشتـهکه د خلکـــو دپیغور شـــو م
دا می بس ده چی ستا غم راسره خپل شو
خیر دی دا کهبیگانه لهکلی کور شوم
ستا دمینی پهسکرو ته کی می کوردی
سمند ر دستاد مینی دسره اور شـــوم
داچی ته می سوزوی زه در تـــه خاندم
دو مر ه کلك دلیو نی مینی په زور شوم
ستا له غمه می شکوه چا تـــه ونهکړه
پټ پـــه پټه لوغړ ن او سوی سکورشوم
نور نوتنگـ کـړم در قیــب ډیرو ملنډو
زړه مـــی وایی له خا موشه ژوندهتورشوم
نور نو توا ن دخا مو شیراسره نشته
څکـه چیغی می له خو لیځیگډپهشورشوم

لغما ن
۱۵-۱۱-۱۳۵٦

دهغو شهيدو ځوانا نو قهر ما نومينلو ته چې خپل ځانو نه يې دوطن او خلکو له پاره قر بان کړ ل خـودامين دفاشيستي بانډ په وړاند يـې دتسليم سرو نه ټيټ نه کړل .

# مـوری

موری په ما پسی ژړا مه کــــوه
مادوطن په مينه سر ايښی د ی
نور نو ستا غيږ ی ته‌درتلی‌نشمه
دوينو غيږ کی مې‌تن ايښی د ی

* * *

زړه مې‌سوری که ددښمن گوليو
له ز خمی زړه مې وينې‌و بهيدې
زخمی‌زخمی شوم‌دبرچوپه څو کو
دژو ندانه غوټی مې ور ژ يد ی

* * *

زه دايما ن او عقيد ی په گنـــاه
داستبداد لمبو کی و سو زيدم
زه له انسان سره دمينی په تور
دخپلو وينو ډنډکی ولمبيد م

سر می قربا ن که دو لس له پاره
خودوطن سر می او چت وساته
وینی می توی شوی‌زړه می‌ودریده
خومی دخپلی مینی پټو سا ته

* * *

موری زما دوینو سروبخر کـــو
داستبداد په کور بلا راو ستی
چاچی وژلم اوخندل یی‌را ته
اوس یی هغو لره ژړا راو ستـــی

* * *

خیرکه زمادژوند ډیوه تپه شوه
خو په وطن کی آزادی ویښه شوه
خیردی که‌زه شومه دقبر بند ی
خوپه‌وطن‌کی خپلوا کی‌ویښه‌شوه

* * *

بس دی نو ماپسی ژړا مه کوه
ای دردیده لی او غمجنی مور ی
نور می په‌زړه کی ارمان‌پاتی‌ندی
زما پتمنی ار ما نجنی مور ی

**کابل**

**۱۲ـ ۱۱ـ ۱۳۵۸**

هغو انقلابي‌نجونوته چې د«امین»دتوری دورې په تورو زندا نونوکې یې زړه در دو نکې شکنجې وزغملې‌خو وطن دمور سر یې اوچت وساته.

# په تور زندان کې

ای دوطن دعظمتـــونو لور ې
ای دسر کشو غیر تو نو لور ی
ای داو لس د امیدو نو غو ټـــی
ای دسری لاری درزمو نو لوری
ای دزندا ن په‌کنج کې بلې ډیو ی
ای‌دغمو نو اودردو نو لور ی

لن راته ووا یه دزړه حا لو نـــه
تاپدې تور زندا ن کې څه‌ولیدل؟

* * *

چادې په‌شو نډو کې خنداوچه‌کړه
چادې په سترګو کې غمونه کرل
چادې دهیلو ګـــلا ن و ر ژول
چادې په‌زړه کې سره‌اورونه کرل
چادې‌له‌سترګو نه‌جاری کړی‌اوښکی
چادې‌سینه‌کې سره داغونه کر ل

چاورو لی زو رید لی نجلـــی
تاپدې تورزندان‌کې څه‌و لید ل ؟

ته دشرف اودو جدان په گنـاه
داستبداد کندی‌ته و غورز ید ی
ته دسپیخلی عقید ی په جـرم
دخاینانو له خوا و دردیـــد ی
ته‌دوطن دروښنایی په خا طـــر
دجیلخانی په کنج کی‌وسو ژیدی

په‌توروشپو کی دردیدلی نجلـی
تاپدی تورزندان‌کی څه‌و لید ل ؟
• • •

«ته‌دمیو ند دسره‌میدان‌بخرکی»(۱)
ته دجنگو نو او رز مو نو پیغله
ته ددښمن‌په‌زړه کی سره‌سکروټه
ته دوطن دارما نو نو پیغلــــه
ته دآزادژوندو ن دباغ گو تره
ته دویاړ لو امیدو نو پیغلـــــه

ماته له هر چاځنی گرانه یی ته
درنه لوگی شم قهرمـا نه‌یی تــه

کابل ـ پوهنتو ن
۱٤ر کب ر۱۳۵۸

(۱) زما له یو بل شعر څخه‌دلته‌نقل شویده .

# د مینې ډیوه

بیګاه می بیا دزړه په کور کـې سوزیدله مینه
لکه نیم ژو نده شمه ورو ورو ژړ ید له مینه
لکه ډیوه چې دشهید دقبر خواته سوز ی
داسې دهیلو اد یره کې بلید لـه مینـــه
دز خمي زړه ژو بل احسا س ته یې راژونه‌ویل
د درد او غم په‌تر خه ژ به غږ ید له مینــه
دیارد ظلم او جفا نه یې ګیلـې کو لی
د خپلــو او بنکو په څپو کې لمبیدله مینه
که می هرڅو ور ته خبرې دخوبنې وکړ لی
خولا همغسې غمجنه بنکارید له مینه
باران داو بنکو می پرې سم که‌چې سره به‌یې کړم
خو سره لمبـــــه‌شوه وار په‌وار لاتودید له مینه
زه یې ازمون ته هڅولم خوژړل یې‌راته
ګو ندې ز ما په در دید لو دردید لـــه مینه
(کاوونه) ډیرې دجفا سیلی یې‌وزغملې
مړاوې‌غو ټې‌شو له خوو نه رژید له مینه

کابل پو هنتو ن
۱۳۵۷ر۹ر۲۸

د«مصئونیت، قانونیت او عدالت»
ددروغجن شعار په ارتباط .

# وحشی قاتل

په وینایی غلطنه‌شی‌خیانتکار د ی
مستبد‌دی‌مرتجع‌دی لوی‌غدار دی
په‌نهاد کی‌یی بدلون نه دی راغلی
همغه‌وحشی قاتل‌دی‌اوخونخواردی

کابل ـ مخفیگاه
۱۳۵۸ر۷ر۳

# هغه اتل ؤ

بیاد (قصاب) چاړه په و ینوسره شوه
بیایو انسان وینو کـی ولمبیده
بیادو حشی جلاد په تو رو لاسو
یو قـهر مان و ینو کی و لمبیدۀ

* * *

بیاد وطن دمور سپیخلی بچی
دشرافت په جرم(!) وو ژل شو
بیاد سر ی لاری یوسر بازه‌عسکر
دشجا عت په جرم وو ژل شو

* * *

له‌سره تیر شو خو بی ننګه‌نه‌شو
په سره سنګر کی‌استوار پاتی‌شو
سر یی تیټ نه که دخاین مخی‌ته
خپل لوی‌ارما ن ته وفادارپاتی‌شو

تورو گولیوته‌یی سپر کړه سینه
خودظالم له جنگه‌و نه تښتید
وحشی دښمن ته یی زاری‌ونکړی
داستبداد په مخکی ونه ژ ړید

* * *

قهرمان لوی شو ،قهرمان‌وجنگید
قهرمان مړ شو ،قهرمان پاتی‌شو
له خپله هوډ ه پښیمانه نه شو
پهلوان زړه یی پهلوان پاتی شو

* * *

هغه اتل‌و د ننگو نو اتل
په‌تورو شپو کی دجنگو نو اتل
هغه مړ غه و دتوفان دخپو
دسختو لا رو درز مو نو اتـــل

* * *

په خپلوو ینو یی رنگین‌وسا ته
دخپل وطن دکارگرانو پر چـــم
داد شر ف اودو جدا ن نښا نه
داد زیارکښو انسانانو پر چم

ستا پا کی وینی به گلو نه‌راو ړی
ای میړ نیه قهر ما ن شهید ه
ارمانی‌لاړ ی خو پوره‌دی که هوډ
دعقید ی آود ایما ن شهیـــده

* * *

ستا په‌سپیڅلی عقیده می قسم
ستا دغیرت په حماسه‌می قسم
شهیده ستا دپا کی وینی‌په‌رنگ
ستاپه سوری سوری سینه‌می‌قسم

* * *

چی ستا دوینو انتقام به اخلـــم
ددی وطن له خاینا نو څنـــــی
دستمگرو له بی پتو ســــــر و
د(سرما یی) له غلا ما نو څنـــی

کابل ـ مخفیگاه
۱۳۵۸ر۸ر۵

# ته رانه غلی

په ژړا می ستر گی سری شوی ته رانه غلی
سپینی ور ځی راته شپی شوی ته را نه غلی
دامید ډیو ی می بلی کړی په زړه کی
خود غم تیار ی خوری شوی ته رانه غلی
ستاو عده وه چی به نن سبا کی را شم
تیری میا شتی او هفتی شوی ته رانه غلی
زموږ مینه دهر چا دخو لـی سبق شو
تری نه جوړ ی افسانی شو ی ته را نه غلی
مروری اوښکی بیا په مـخ بهیږ ی
چی دروغجنـی دی و عدی شوی ته رانه غلی
تاندی هیلی می دغم په لمبو وسو ی
تری نه ډ کی هدیری شوی ته رانه غلی
ستا په لار کی می څرا غ دځکو بل که
ککی و سو ی ډیوی مړی شوی ته رانه غلی
په‌و عدو دی آرزو گانو غو ټی وکړی
بیر ته مړ او ی شو ی ایری شوی ته‌رانه‌غلی
د(کاوون) زړه کی د صبـر مجال نشته
نور یی تنگی حوصلی شوی ته رانه غلی

کابل پو هنتو ن
۱۳۵۷-۷-۵

# یاغی مینه

دسا قی ډك ډك جا مو نــــه
دخوږو شو نډو ستو نــــه
اشاری د مستو ستر گـــو
دمغرور آشنا نا زو نــــه

لمسوی می سو زیدو ته
غورزوی می سرو لمبو تــه

گلالي شفقي شو نـــه ی
دلمبو دکنهٔو ل خنـــه ی
دغمبو رو ســـره گلو نــه
د سینـــو اشا ر تو نـــه
توري زلفي در مندو نـــــه
پهٔزړ ه ږ د ی را ته دا غو نه

پارو ی می ، پار وی مـــی
لیو نتو ب ته لمسو ی مــی

• • •

دا ز مـــا لیو نی مینــــه
دا یا غي سارا نی مینه
ورا نو ی د ثوا ب کلـــــی
ړنگو ی د تو بو غرو نـــه
دتقوی له با غه تښتـــــــی
د گناه په او ر ور دا نگـــی
سو زوی می سو زوی می
سرو لمبو ته غو رزوی‌می

کابل- پوهنتون
۲۰-۱۱- ۱۳۵۶

# دقهرمان شهید په قبر

شهیده ! نن می دز خمی زړه تشول غواړ مه
ستا په مزار دیوځو او ښکـــو تویول غواړ مه
بیا در ته راغلم چی تو دی کړ م سړی شوی هیلی
بیا درته راغلم د( سو گند) تازه کول غواړ مه

* * *

زړه می دتیر ی غو ندی کلـک که ماویل نه به‌ژاړم
ستا دمزار لو حی می‌سترگو تـه ژړاراو ستـه
ستا قهرما ن صور ت می بیــااحساس را وپا راوه
دژوبل زړه په کور یی بیا را ته غوغا راو ستـه

* * *

گلان می نه‌شو راوړ ی لار کـی راته سپو غپلی
په ځای دگلو می داو ښکو سو غاتو نه راو ړ ل
چادی په قبر سر ه‌غاتول‌او چـا گلاب ایښی دی
خو ما... دزړه په‌وینو ر نگ یو ځوشعرو نه راو ړ ل

داستبداد گز مو دستا دقبر لارخار له
شهیده ! څکه نن یواز ی‌او تنها راغلمه
ستا له‌کالیزی می ملګری‌خبرولی نه شو ل
ژو بل ضمیر غمجن زړ ګی ا و نیمه‌خواراغلمه

* * *

دلته‌و حشی استبداد هسی لیو نتوب راخستی
چی‌یی ظلمونو ته حیـران دی(هټلری) لیو نیان
دلته د خلکو په نوم هغسی ستم‌چلیږی
چی یی ظلمو نو ته حیران دی‌فاشیستی لیو نیان

* * *

د چاپه‌و ینو یی خړوب کړ لی‌ددښتو شګی
دچاپه پښو کی زو لنی‌اوزنځیرو نه پراته
څوك په‌وطن کی بیګانه او بی‌وطنه‌ګنی
دچاپه نوم پسی د درو غو تومتو نه پراته

* * *

شهیده ! ستاد شهاد ت‌په‌ولو له‌می‌قسم
ستاپه پخه او مقد سه ارا ده می قسم
ستا په مرام ستاپه ایمان او ستا په‌پاکه‌لاره
ستا په‌جذ به ستاپه سوری‌سوری‌سینه می‌قسم

* * *

چی ستادو ینو دغوټیو انتقـا م اخلمه
ستا دسپیڅلو ارما نو نو لو ی جهان جوړوم
چی راچپه کړی دو حشـــــــی استبداد توری مانی
له‌دی‌خورو ورو وګړو نه تو فان‌جوړوم

کابل ـ مخفیګاه
۱۳۵۸/۲/۴

# جـلاد

که هر څو په مخ نقاب د (عد ل) کش کړی
زه دی پیژ نم خا ینه چی جـلاد یــــی
گو ډاگی دامریکی او ارتجـــا ع یـــی
ته قصا ب یی ته عا مـــــل د استبداد یی

کابل ــ مخفیگاه
۱۷ر۷ر ۱۳۵۸

# تەبەرانەهیره نشی

تەلکه یوه پاکه هیله
ته لکه یو بنکلی ارما ن
تەلکه یو خو ږ اوپارونکی غز ل
تەلکه دګلووږ م
زړه ته می را ننو تی
رګ رګ کی می وګرځیدی
ټول بدن می تاو نیو
ستاشو مه،
جدا شو مه له نورو خلکو
وسو زیدم و کړ یده م
ودر دیدم و ژړیدم
زړه می شو زخمی زخمی
خو ستا مینه می هیرەنکړه

تن می که ایره ایره شی
سر می که ذره ذره شی
وینی می کەو بهیږ ی

ستا مینه به هیره نەکړ م

• • •

تن به می اورونه راوړ ی
سر به می‌شو رونه راوړ ی
وینی بەمی سری شی
داسری وینی بەگلونه راوړ ی

بیابه نوداسره گلونه

ستا مینه ژو ندی و سا تی
تەبه رانه هیره نه شی

**کابل- مخفیگاه**
**۱۴ر۸ر ۱۳۵۸**

# سوزیدو ته هڅوی می

زړه می ډک شو له غمو نوژړیدو ته هڅوی می
له‌ساړه ژو ندمستو مان دی سوزیدو ته هڅوی مــی

شور اوچیغی رانه غواړ ی‌بیتا بی کوی سینه کی
له‌سکوت سره دښمن دی چغیدو ته هڅوی مـــــی

لیو نی زړگی می‌ژاړ ی‌لیونتوب راځنی غواړی
سرو سکرو ته‌ور دانگی لو گیدو ته هڅوی مـــی

انتظار نه ستړ ی شوی قر بانی‌ته می راکاږی
دخپل‌ځان دوینو ډنډ کی لمبیدو ته هڅوی می

راته‌وایی چی وردانگه دد ښمــن په‌سنگرو نو
نور په صبرصبر نه‌شی جنگیدو ته هڅوی مـــی

زه‌یی سر ترپایه‌و سو م دی لا اوس هم راضی ندی
کړیدو ته‌می رابو لی در دیدو ته هڅوی می

کابل- مخفیگاه
۱۳ر۹ر۱۳۵۸

# د رڼا لپاره

ستا دغرور پیمانې ډکې نه شوې
زما له او ښکو نه دریاب جوړ شو
ستا په ښو اوښکې و نه څلیـدې
زما په مخ باندې سیلاب جوړ شو

• • •

ستا په‌سر کو شونډو خندا نښتې ی
زما دوچو شونډو غم خه کو ی
زه به‌ژړیږ مه چې غم لر مــــه
ستا بې‌نظره‌سترګې نم‌څه کو ی

• • •

که‌ته خندیږ ی دخندا په هو س
خوزه‌ژړیږ م چې خندا راو لـــم
ته‌له لمبو تښتې چې‌ځان‌وسا تې
خوزه سو زیږ م چې‌رڼا‌راو لم

کابل ـ مخفیګاه
۲۰ر۳ر ۱۳۵۸

# سلګی

بیا می شوی دواړه ستر ګی سری درپسی
درو می داو ښکو قا فلی در پسی

دتورو لړو غو ندی و غز یدی
داسو یلیو سلسلی در پسی

یو ځل دسوی زړه تپوس خو وکړه
شوی ځوانیمر ګی می اسری در پسی

چی شی رایادی هغه تیر ی ورځی
زړه کی شی جوړی زلز لی در پسی

غمجن زړ ګی می تسلی نه منی
او ښکی راځی خور ی ور ی در پسی

شپه او ور ځ خارم درا تلو لاره دی
سترګی می دواړه شو ی کړ ی در پسی

ولی دی هیر کړ م دزړه سره آشنا
وهم سلګی وړ ی وړ ی در پسی

که ته هر څو جفا ،جفا شي رانه
خو لیه می نه راځی ښیری در پسی

(کاوو ن) له غمه په اور و سو زیده
زړه کی یی بلی دی لمبی در پسی

داشعر دیوی خارجی نجلی په باره
کی لیکل شویدی

# دهوسونومرغلره

هغه دگلو دښایسته غو نچی نه ښکلی پیغله
دناز په غیږ کی لو یه شو ی نازولی پیغله
هغه د حسن او ښکلا یوه دلبنده نښه
هغه دناز او نزاکت یوه څرگنده نښه

دشونډو څو کی یی دسرو میـو پیالی یادوی
دناز خندا یی دشرا بو قلقلـی یادو ی
خماری ستر گی یی د مینی لـه نشو نه ډکی
دپیغلتوب لهزړه راښکو نکـــو کرشمو نه ډکی

له اننگو نه یی شر میږی سر ه گلونه دباغ
دمخ شغلو کی یی ور کیږ ی څراغو نه دباغ
انگوری شونډی یی پیا لی دی لهشرابو ډکی
دواړه رخساره یی کاسی د ی له گلابو ډ کی

دناز کاته دناز خندا دناز وړ ی خبری
له نازه ډ کی خو ندور ی اوخوږی خبری
چی پهسپین مخ یی توری زلفـی امیلو نه جوړ کړی
خوری ور ی کړی تری جو ړ ی شی دامو نه جوړ کړی

ورو څی لیندی او ښکلی پوز ه یی مور چل غو ندی شی
کاږه باڼه یی زخمی زړو نو ته اجل غو ندی شی
په تورو زلفو کی یی زانگی درد یدلی زړو نه
دمحبت په تار ښکیل شـــو ی رنځید لی زړو نه

پاس پەسینه یی دوه کوتر ی اتهنو نه کوی
داغلوزړونو ته لو خ لـــــو خ اشارتونه کوی
دحیا غرو نه نړو ی هغه بیباکه نجلی
د هو سو نو مر غلره هوسنا که نجلی
کله یی سری شو نډ ی خوا ږه خوارډه ستو نه کوی
کله یی زلفی تور ما را ن شـــی گوزارونه کوی
کله له نازه په خندا شی او کږه وږه شی
کله دکبر او غرور خوا ته خوره وره شی
چاته چی و گوری سینه کی یی لمبی بلی کړی
مړاوی سکرو تی راژوندی کړی او ایری بلی کړی
په ډیرو زړو نو یی دغم او درد داغونه ایښی
ډیرو سینو کی یی دمینی سر ه اورونه ایښی
دنجو نو میره بی مثا له اوحسینه پیغله
لهلطا فت او ښکلا ډ که ناز نینه پیغله

* * *

خو دا چی دومره ناز نینـــــه او ښایسته ښکارین ی
دښکلا کان او د نازونو خـــزانه ښکارېږی
داچی دوه سترگی یی په زړونوکی لمبی بلوی
دپتنگانو سو زید لو ته ډ یو ی بلوی
داچی سری شو نډی یی د میـــو پیمانو غو ندی دی
چی اننگی یی دسرو گلو دغونچو غو ندی دی
دمظلوما نو پهسرو وینو لو یه شوی ده دا
دزور او ظلم پهزانگو کیزنگیدلی دهدا

داد پلیدو او خیر نو هو ســـــو زیږ نده
داد ناو لو انسانانو د نشـــــو زیږ نده
داد ډالر دخاو ندا نو د مستیــو آله
د ا دطـلا دقا صدانــو د پستیــو آلـــــه

دمزدور غوښی یی خوږ لیدکبابو په ځای
دبزګر سری وینی یی خښلـــی دشرابو په ځای
دکونډو رنډو له خو لو نه یــی نشی اخیستی
دیتیمانو له ژړا نه یی نغمـــی اخستی

داد کارګر له دردید لی زړه نه څه خبره
داد مزدور دغم ځپلی زړه نــه څه خبره

ډیری نا مراد ی ارما نجنــــــی دردید لی پیغلی
دبیو سیو په لمبو کی سو زیدلی پیغلی
خاورو ته تللی څو چی دا شـــی نازو لی لو یه
لهبی خو بیو نا خبره خوبو لـــی لویه

دشونډو رنګیی دی له و ینــو دبیو سی پیغلی
دنا میندیو په اور سو ی او بی کسی پیغلی
ددی دوږو انسانانو په ژړا څـــه پروا
ددی د لوڅو مزدورانو په غــوغا څه پروا

داد پلیدو انسانانو دبز مو نـــو ډیوه
داد طلادغلا ما نو دکور و نـــو ډیوه
دزردارانو په محفل کی نڅیدوته جوړه
دناپاکیو په ګردا ب کی ډو بیدو تهجوړه
ددی دمینی او وفا او شرا فـــت سره څه
ددی دخلکو در زمونو لهغیرت سره څه

دسرما یی له پاره هر څه‌قبلو لی شی دا
ځان په هر رنګ او په هر خم کی رنګو لی شی دا
ددی مستی ماته دنورو ژ ړ یدل یادو ی
دوړو تړو ماشوما نو زو ر یدل یادو ی
دی ته چی ګورم یتیمان سپیر ه ګردو کی وینم
دی ته چی ګورم وږی تږ ی‌درد یدو کی وینم
دی‌ته چی ګورم راته ښکار ی رنځیدلی خلك
دسرما یی اودطلا ستم و هلـی خلك

* * *

له لری لری ددی خلکو آوا زو نه اورم
ددوی هورا اوددو ی چیغی فـــر یادو نه اور م
هره خوا ګرځی دیووا لی اودیون خبری
د قهرمان لور او ځتك دپیوستون خبری
څو دتیری او تجاوز تور زنځیر ونه مات کړی
څو دبی‌نیاز ه نازو لو ورمیږونه مات کړی
څو چی په‌کور داستبداد بانــد ی غوغا جوړه کړی
څوچی دظلم اوظا لم په‌سر بــلا جوړه کړی
څودستم اوسر مایی توری پردی څیری کړی
څو چی دتورو وریځو تـــــوری سلسلی څیر ی کړ ی
څو چی مستی و کړی ځپا نده شی توفا ن د خلکو
څو چی پوره شی دعمرو نو لوی ارمان دخلکو

**کابل پوهنتون**
**۱۸ر۹ر۱۳۵۵**

# دمینی آزموینه

دسوی‌زړه‌زخمو نه می دوا را ځنی غواړی
شر بت دسر کوشو نهو دآشنا راځنی غواړی

شهیدو آرزو گانو نه می دکـــی هدیری شو ی
نیم ژو ند ارما نو نه مسیحا راځنی غواړی

دزړه بلبل می تنگ شو دسینی تنگه دنیا کی
آزاد والو تلوته دنیا راځنی غواړی

په‌سوو فریادو نو نړو ی دسکوت غرونه
زاری کوی ژړا کوی غوغا را ځنی غواړی

ستم درقیبا نو له غمو سره‌عادت کړم
دا خو مره لیونی دی چی خندارا ځنی غواړی

رگو نو کی می وینی دسکرو تـو غو ندی سری شوی
اورونو لگولو ته‌رضا را ځنی غواړی

رندانو میکده کی بیاتازه کـړ لـسو گندو نه
جا مو نه‌شر نکوی شور او غوغا راځنی غواړی

سا قی !هومره می مست که چی تقوی شی رانه هیره
دا عقل لیو نـی می بیا وفا راځنی غواړی

په‌رگ رگ‌کی می‌گرځی دجنو ن داور بخر کی
د مینی از مو ینی ته سلا را ځنی غوا ړ ی

کابل ـ مخفیگاه
۱۱ـ ۹ـ ۱۳۵۸

# د اوښکو سیلاب

نور می پهزړه باندې دا غونــه مهږده
سوی سینه کی می اورونه مه ږ د ه

دپاکی مینی په سپیڅلی دړه
د هوسو نو پر ها رونه مــــــه ږده

چی‌دی پهژو ند د مینی لا س رانه که
بیا می په قبر سره گلو نــه مهږده

نور نو شر بت کی ز هـــــــرمه راکوه
په‌وچو شو نډو می جا مونه مه ږده

زنځیر دزلفو را ته مـــــــــه ښو روه
نور می پهلاره کی دامو نه مه ږ ده

د مرورو او ښکــــــو ســــــو ر سیلاب ته
دلباسی وعدو بندو نه مــهږده

چی هیلی ځوانی و ی نو تــــــه رانه غلی
او س په ایرو یی قد مو نه مـــــــه ږده

پهتو متونو کی می مه رنگوه
پـــه پاکه مینه می رنگو نه مـــــه ږده

پریږ ده (کاوون) زړو غمو نــو سره
ورته تازه تازه غمو نه مهږده

**کابل**
**۲۸ر۲ر۱۳۵٦**

# زمادشعر ژبه‌سکوت‌نه‌منی

زه تر خه سکو ت دغره له‌شانه
زه دنا کا مو ارما نو نو د ایرو له‌ځنګه
دویرو نکو تورو شپو په‌زړه‌کی
دشعر کو ترو ته پروازورکوم

زه سکوت نه پیژ نم
زما دشعر ژ بهسکوت نه منی
زه به دشپی ځنگل به ستور و باندی وو لمه
څو چی سکوت مات شی
څو چی تیاری و تنبتی
څوچی رسوا شی په ځنگله کی څیروو نکی لیوا ن

* * *

بیابه زما دشعر کوتر ی په زری بنهکو
والوزی پور ته اود لمر چینه کی وبه لامبی
او دسپوږمی په سپینو څنهو کی بهوزنگیږی
بیر ته به راشی دچمن پهلوری
اوپه خپلو بنهو کی به راوړی د شبنم څاڅکی

* * *

څو چی تازه شی رژیدلی گلان
زماد شعر دالهاو نو سوزیدلی گلان
خزان زیلی گلان
بیا بهنو توره شپه وی تیـره اوسکوت به مات وی
خلك به خاندی دسکو تاو توری شپی په مړینه
زه به هم خلکو سره خاندمترانی بهلیکم
دخپلی مینی ددردو نو افسا نی بهلیکم

**کابل ـ مخفیگاه**
**۱۳۵۸ر۹ر۷**

# توری شپی

دغم په تورو شپو کی ستـــا یادو نه دی اوزه یم
دهیلو سو زیدل دی سره اورونه دی او زه یـــم

خو ښی او خوشا لی او ددنیا ټول لذتو نه
هر څه را څنی هیردی ستاغمونه دی او زه یـم

دزړه گلشن می لوټ که دجفاتر خو سیلیو
دخوانو آرزوگانو مزارو نه د ی اوز ه یـــم

دهجر تورو شپو ته څلـــو م داو ښکو ستور ی
دو صل تلوسی دی شو گیرو نه دی او زه یـم

د مینی په دنیا کی لیو نتو ب می شو په برخه
باغونه را نـــه پاتی شو ل دړاگونه دی او زه یـم

آرام شو رانه پاتی دآرام ژوندون په هیله
اغز نه اوږده لاره ده مز لونه دی اوزه یـــم

دسرو شو نډو په تمه مدام و چی شو نډی گرځم
دو صل دشیبو خواږه خیا لو نه دی اوز ه یـم

جنون که لیو نتوب دی که جذ به دخوږی مینی
نشه ده که مستی ده که در دو نـــه دی اوزه یـم

ذره ذره د تن می مینه مینه شوه ملگرو !
دا څکه او س د هرچا تومتونه دی اوزه یـــم

دصبر کنډو لی می نور تر مو ر گو پوری ډک شو
کلونه شو ل اوږ ده انتظارونه دی اوز ه یم

څپی غوندی روان یمه د مینـــی سمندر کی
(کاوو نه)تور ی شپی دی توفانو نه دی اوزه یم

**لغمان**

**۱۳۵۶ر۸ر۲۸**

# د هیلو کعبه

پەزړگی کی می‌بلیږ ی ستادمینی سره اورونه
سوزو ی مـــی دردوی می ای‌وطنه ستا غمو نه
هره پاڼه دتاریخ دی لوی دفتر دحادثا تو
له غیر ته سره لمبه‌شم چی دی‌لولم داستانو نه

زه په‌تابانده ی نازیږ م ،ته می ویاړ دژو ندانه یی
سر دی جگک شمله دی‌نیغه،ته غیرت‌یی‌ته ننگو نــه
ته می مینه ته می وینه ته می‌روح یی ته می‌تن‌یی
ته می نور ددواړوستر گو ، ته می پلی ته می‌رگو نه
ته‌کعبه زماد هیلو ته لیلا ز ما د مینی
ستاله سره سپیلنی شه زما سر ز ما هـــیو نــه

ته رڼا زما د ستر گو ته قوت‌زما دمټو
تارا کړ ی شو ردمینی تارا کړی دی سو زو نــه
دژوندو نوږ مه چلیږ ی ستا په سرو او په‌رغو کی
وینبوی ویده‌وگړ ی جگو ی‌زو ړ نـــد سرو نـه
پاخوی له درانه خو به پر گنی‌دخورو خلکو
څو یو مټ او یو قوت‌شی دا خواره واره لاسو نه

دپا میر په دنگو څو کود خیبر لویه لمن کی
ژو ندی شوی آرزو گانی خو څید لی ارما نو نــه
جوړو ی دی جگو ی‌دی نازوی‌دی په دنیا کی
په پراخو بیا با نو دی ټو کوی رنگین گلو نـــه
چی ته بناد او ته آباد شی ټول وگړی دی آرام شی
هله جوړ به شـی وطنه‌د(کاوون) دزړه زخمـو نه

**کابل**
**۲۶ر۱ر ۱۳۵۶**

# نوی سوز اونوی ساز

بیاد لوړ پا میر په څو کو ، د زلمی شپو نکی آواز دی
په لمن دهندو کش کی دیو نوی ژو ند آ غـــاز دی
دسپین غره په شاو خوا کی دخو ښی نغمی غږیږی
ټول وطن په ګلو پټ شو عجیبه غوندی اعجاز دی
هری خواته‌و لولی دی غیر تـــی افغا ن و ینښ شوی
په خیبراوتاتره کی نوی سوز او نوی ســاز دی
نن دهر افغا ن په‌شو نډود خو ښی‌خندا نخیږی
ولسی نوی نظام کی پروت‌دنوی‌ژوندون راز دی
په افغان ولس کی جوړه نن یوه نوی خوشا لی ده
په ملکو نو د جهان کی پوره شوی یی سیالی‌ده

* * *

دوطن خد مت ته‌پاڅه ای از بکه‌ای افغانه
ای ددنګو غرو نو زو یه ای دعصر پهلوا نــــــه
هزاره یی که ترکمن یی ټول‌دلوی افغان بدن یی
ای تاجکه ا ی پښتونه ای بلو څه قهرما نـــه
متی‌ونغا ړه راپاڅه دی وطن نـــه ګلشن جوړ که
دنړی په ملتـــو کی سر او چت که تر آسما نه
ته غیرت یی ته همت یی‌ته‌ټینګار او شجاعت یی
اوس‌نو درو مه مخ په‌وړ اندی پاتی‌نه‌شی له‌کاروانه
چی‌رڼا دانقلاب کی نوی ژو ندپه لوری یون دی
دافغان‌په‌ژو ندانه کی، یو سپیڅلی او ښتون دی

# د کبر جام

ورکه شوه په شونډو کې خندا زما
غم سره اخته شو له سودا زما

څاڅي مې له زړه نه وینې تا پسې
ډوبه شوه د زړه ښکلې دنیا زما

تا چې د رقیب خندا ته وخندل
ورژیده ځوانه تمنا زما

ټول جهان حیران دی زما چیغو ته
ته یې چې لا نه اورې غوغا زما

وران شو د نیمګړو ارمانونو کور
پاتې شولې هیلې نیمه خوا زما

ندی لا ډک شوی ستا د کبر جام
سترګې تکې سرې شوې له ژړا زما

راشه د (کاوون) د ژوندانه ډیوې
ته یې د تیاره ژوندون رڼا زما

**کابل**

**۲۵ـ ۵ ـ ۱۳۵۷**

# ورکه کوتره

ستاله غمه می په زړه کی ارمــان سوزی
په لیموکی می د او ښکو تو فان سوز ی
ټول بد ن می ستا دغم لمبـــو نیو لی
په‌رګوکـی می د شعر بلبلان ســوزی
ای زما ور کی کو تری چیر تــه‌لاړی
بی له‌تا می دز خمی زړه جها نسوزی
په درد مند زړه می دردو نه‌هسی اوری
له‌هیبته یی درمل او در مان ســوزی
شپه اوږ ده شوه لاره ډکه لــه‌اغزو ده
تحمل مــی نور هډو کی دځا ن سو ز ی
را اوچت شه دبهار خوږه نسیمه
چی‌زما دخوانو هیلو ګــلا ن ســـوز ی
دځوان په دوزخی مانۍور دانګه
هله‌ژر شه‌وخت تیریږ ی زما ن سو زی
دغو ټیو له‌پښو نه زنځیرما ت کړه
ستا له‌زوره تورو جود دځوان سو ز ی

کابل ـ مخفیګاه
۱۲ر۷ر۱۳۵۸

# دوطن پیغلی ته

ته دپامیر دجگو تړو پیغله
زه دخیبر ددنگو غرو نو زلمی
ته دسپین غره دسپینوځوکونجلی
زه دسالنگ‌دتوفا نو نو زلمی

* * *

ته دمیو ند دسره میدان ښځر کی
زه‌دشمشاد دسپینی توری ځلا
ته دچونغر پەسر ځلا ندەستوری
زه دخیبر پەسر دمینی بر یښنا

* * *

ته دیا غی اباسین مسته ځپه
زه د آمو دتوفانو نو غور ځنگ
ته د هلمند د گر دابونو هیبت
زه دکنړ دسیلا وو نو غور ځنگ

راځه راځه دواړه په ګډه سره
دی سړی خاوری ته‌اورونه‌ورکړو
راځه چی‌چیغی کړوناری وو هو
راځه بی ددرو ته دردو نه‌ورکړو

* * *

راځه چی ما ت کړو دپیړیوزنځیر
راځه چی ورانی کړوداتوری پولی
راځه چی مړکړو داد جهل ښامار
راځه چی ماتی‌کړو دظلم تو ر ی

* * *

راځه چی‌ویښی کړو خوبو لی‌ولس
راځه چی‌جګ‌کړو دالویدلی وطن
راځه چی پاڅو و دمرګ‌له‌خوبه ،
داربړ ید لی در دید لـی وطـن

* * *

راځه تودی کړ و سړی‌شوی‌وینی
راځه سړو زړو نو ته‌اور ور کړو
راځه رګو نو کی لمبی سمی کړو
راځه مغزو ته‌نوی شور ورکړ و

* * *

راځه چی مست‌کړو دغیرت‌په‌میو
دترخه‌ژو ند خمارو هلی خلـک
راځه چی خپل کړودا له‌ځانه‌پردی
راځه چی یادکړو داهیرشوی‌خلك

راځه چې غونډ کړو داخوارهوګړی
راځه سو ما ورته دننګ ورکړو
دنوی ژوند اونوی رنګ جګړی ته
وزره د هغو مې دجنګ ورکړو

* * *

راځه چې ګوتو نه کلک سوک جوړ کړو
راځه چې مات کړو ددښمن غابښونه
راځه چې پریکړو دچلونو پړی
راځه آزاد کړو میرا ثي مریونه

* * *

راځه چې مات کړو راچې و سوزوو
داد تیری او تجاوز هډونه
دغه په ظلم غټې شوی خیټې
دغه ها تی غوندی ډبل غټو نه

* * *

راځه پخلا کړو مرور آشنا یان
راځه چې سم کړو لیونی ملګری
راځه چې یو کړو دابیل بیل کورونه
راځه چې غونډ کړو سارانی ملګری

* * *

راځه چې ورانه کړو دظلم دنیا
راځه چې پوه کړو دا زاړه برجونه
راځه چې و سوزو د زړو ما ڼی
راځه چې و نړو دزور لاسونه

راځه چې بلې کړو دشپې پهٔ زړه کې
دابدی ژو ندا نه نو ی ډ يـو ی
چې دی تیاره کور ته رڼا وبښې
راځه چې و لګوو ښکلی ډ یوی

* * *

راځه خړوب کړو دخپل تن په خولو
دپاکو هیلو د ګلونو نیالـګـی
راځه چې روڼ کړو په شبنم داو ښکو
دسره انسان دهدفونو نیا لګـی

* * *

څوچې رالوی شي څوچې وغوړیږی
څوچې دنو ی ژو ندګلان راو ړی
څو چې وږ می کړې هریخوا ته خوری
څو چې دردونو ته درمان راو ړی

بیابه نو هلته ستا په تورپیکی کـی
دخپلې مینی سره ګلونه کیږدم
بیابه نو ښکل کړم ستامیګونی شونډی
دزړه په سر به ستانازونه کیږ دم

کابل پوهنتون
۱۷ر۸ر ۱۳۵۶

# هیروی دی نشم

له‌تانه څم خو پریښبود ی دی نه‌شم
یاره قسم دی هیـــرو ی دی نشـــم

تاچی ونه وینم دنیا تیار ه وی
دستر گو توره غور زو ی دی نشـــم

په پټه و سوم آ شنا ستا مینه کی
دزړه له حاله خبرو ی دی نشـــم

د تن ذره ذره می ستا مینـــه شو ه
اوس نو له‌ځانه بیلو ی دی نشـــم

هر څه می پریښبو د ل پر د ی شو م ترینه
ته یی چی گرا نی پریښبود ی دی‌نشم

یوازی پاتی شو م دغم تیا ر و ته
نصیبه خوار شی بد لوی دی نشـــم

ته راته ژاړ ی آ شنا کبــــر کوی
زړ گیه‌وچو ی صبرو ی دی نشـــم

(کاوونه) اور شوه ناز و لــــی مینه
پکی سوزیږه خلا صو ی دی نشـم

کابل
۱۷ ر۵ر ۱۳۵۷

# دشاعرز ړه

ملګرو تاسو مې‌د زړه دنیالیدلی نشی
پدی خاموشه دنیاګی‌کی فریادونه شته‌دی
تشه‌سره دښته یی مه بو لی دا غجنه‌سینه
دلته‌سکروتی راوریږ ی سره اورو نه شته‌دی
دلته دوینو ډنډو نکی دی هیلـی لامبی پکی
دلته یو خـــــــوستم و هلی ار ما نو نه شته دی
دلته چړو دستمګرو خپل یادګار ایښی دی
دلته ز خمو نـــه‌پر هارونه او دا غو نه شته‌دی
دلته اغز ی دهو سو نوټوکیدلی ندی
دلته دمینی‌ځورنګین غوندی ګلونه شته دی
دا دشاعر زړه دی ملګرو! توره تیره نده
دلته احسا س‌دی دلته درد دلته غمونه‌شته دی
دلته‌ویدی دی افسانی دارما نـــی ژوندانه
دلته غمجنـی ترانی خواږه شعرو نه شته دی
داد شاعر زړ ه دی یوه دنیاغمونه‌لری
اور لری شورلری ژړا لری دردو نه‌لری

کابل ـ مخفیګاه
۲۵ر۸ر۱۳۵۸

# وطــنــه

وطنه سر به مي لوګی کړم درنه
ته مي دعقل او ايمان ننبه يــی
ته مي کعبه يي دسپيڅلو هيلو
ته مي دښکلی سره ارمان ننبه‌يی

* * *

ستادسپيڅلی‌خاوری هره لويشته
ماته‌کيسی دغير تو نو کـــوی
ستاددی دنگو غرو نو هره تا له
ماته‌بلنی درز مو نو کـــو ی

ماته غیر ت د مـــــلا لی یادوی
ماته شکست دانگر یزانو ښیی
ماته(روښان) ماته (میرویس) یادوی
ماته داستا ن دګرګینا نو ښیی

* * *

رایادو ی دخپلوا کی شهیــد ان
چې‌یی په‌سرو وینو وطن سورکه
رایادو ی غلبیل سینی دپیغلــو
چې‌یی په جنګ‌کې‌خپل‌بدن‌سورکه

* * *

موږ ته‌یی وروز ل په خپلو وینو
ستا دخپلواکه‌ژوندون ښکلی‌ګلان
اوس به‌یی موږه هم په‌وینوساتو
دغه دسری لاری سپیڅلی‌ګلا ن

کابل ـ مخفیګاه
۱۳۵۸ر۳ر۲

# دسمون سوز

مینه ورته مه وایه جنون چی پکی نه‌وی
شوق دسو زیدو او کړ یدو ن چی پکی نه و ی

تیره تری‌نه ښه ده هغه زړه چی بی احساسه‌و ی
درد چی پکی نه‌وی موج‌خون چی پکی نه و ی

سرور ته مه وایه خو شی لوټه دو همو نو ده
فکر د بقا او اوښتو ن چی پکی نه و ی

څه دی هغه سر چی له‌و طنه صدقه نه شی
څه دی هغه‌زړه سوز دسمون‌چی پکی نه وی

نه ارزی کتا ب تشو لوستلو باندی نه ارزی
راز دحر کت او دبدلون چی پکی نه و ی

وگرځم زاړه نه چی سنبا ل په نوی فکرو ی
څه به کو م ځوان نوی مضمون‌چی پکی‌نه‌وی

شعر دخلکو ندی تش انځو ر د هو سو نودی
زیری درنا ، ا و سباوو ن چی پکی نه و ی

هره ترانه چی می دزړه له‌با غه‌والوزی
سوزی وزرو نه‌نوی یون چی پکی نه وی

کابل ـ مخفیگاه

۱۳۵۸ر۶ر۲۰

# دمینی خمار

دیار په مخ زلفی خوری پا تی شوی
زماپه‌زړه کی اندیښنی پا تی شو ی
مایی لا مخ ته سم کتلی نـــه‌ؤ
بیر ته ستنه‌شوه ستر گی سری پا تی شوی
ماویل دفتر دزړه به خلا صـــ کړم ور ته
خورا نه‌لاړ له گیلی پا تـــی شو ی
خمار د مینی می و جـــو دسو زوی
خواکی می دکی پیما نی پا تی شــــو ی
تل به یی لاپی دو فا کو لی
اوس‌ترینه تشی افسا نی پا تی شـــو ی
که هر څو ر زا غلل ‌ ری د غـــم بادو نه
دسر و گلو نو شونډی سری پاتی شو ی
دزړه ز خمو نه می خند یږ ی‌ورته
وختونه‌لاړل خا طری پا تی شــــو ی
زاهد رسوا شو ز هد یی خام‌وخته
په میکد ه‌کی تری تسبی پا تی شـوی
((کاوونه)) پورته که ما ت شوی قلم
چی له بلبل نه ترا نی پا تـــــی شو ی

**کابل ـ مخفیگاه**
**٤ر ۱ر ۱۳۵۸**

# دشهید وینې

دشهید لهوینو جوړ شو ل توفانو نه
را چپه یې کړ ل دظلم دیوا لو نـــه
تور نظام د استبداد یې سر نگون که
لهستم نه یې آزاد کړل ولسونه
لهلاسو نو نه یې ما تې اتکړ ې کړې
په یوه څپه یې وران کړل زندانو نه
ای شهیده ستا په وینو مې قسم دی
چې به اخلم دپیړ یو کسا تو نه
ستا سوری سور ې سینه مـــې هیرهنده
را یا دیږ ې ستا دســرو وینو موجو نه
سردې ور که خو پر چم د ې نښکته نه که
پولادی‌ووستا سر کښه غیر تو نه
افتخار ستا په ایما ن او ستاپه‌هوډ شه
ای شهیده ابدې دی شه یا دو نــه
دامید مړاو ې‌غو ټې دې بیر ته گل شوی
بریا لی دی شول شهیده ار ما نونه
ځان به تاغو ندې قربان کړ مه له خلکو
پرې به نـــه‌ږدمه دښمن ته سنگرو نــه

**کابل ـ پوهنتون**
**۱۳۵۸ر۱۰ر۲۶**

# آزادی

وطن آزاد شو زنځیرو نه مات شو ل
داستبداد زاړه برجو نه مات شو ل
دجیلخانو دروازې و لړ زیدی
دزور او ظلم زندانو نه مات شو ل
فکر آزاد شو قلم و نخیده
له وچو شو نهو نه مهرو نه مات شو ل
دوطنوا لو غاړی جګې شو لی
دخا ینا نو ورمیږو نه مات شو ل
غوږې د هیلوشو نهی سرې کړلی بیا
چې دخزان ساړه بادو نه مات شو ل
چې یې دخلکو په سر لو بې کړلی
او س دهغو زوړ ند سرونه مات شو ل
ښومره قوی ده د تار یخ ښپیړه
په یو ګوزار یې طلسمو نه مات شو ل
چې ؤ دخلکو په سرو و ینو ککړ
هغه تناب هغه دارونه مات شو ل
(کاوونه) جګ سا ته بیر غ د خلکو
چې ددښمن تور بیر غو نه مات شول

کابل ـ پوهنتون
۱۹ـ ۱۰ ـ۱۳۵۸

# زه‌درنه هیرنشمه

که زما وینی بهیدلی نه‌وای
که زما غوښې سوزیدلی نه وای
او که سینه می په گولیو سور ی شوی نه‌وای
اود ناکا مه‌ژو ند غوټی می‌رژیدلی نه وای
نودغه سره او ښایسته گلو نه
دغه تنکی او نازو لی غونچی
په دی سپیره بیدیا کی
پدی ښور ه اوسوزونکی ځمکه
راټو کید لی نه شوی

* * *

او که زما دوینوستوری ځلید لی نه‌وای
نو(لمر) به څنګه خپله لار ه‌موندله
او (ځنګل) به چاپه ســـــر و سکرو ټو ویشته
او شپه به څنګه رسیــــــــده سباته
نو ای زما دسری جګړی ملګرو !
زه درنه هیر نه شمه

کابل

۱۲ر٤ر۱۳۵۹

# هـوړ

چې مې دهيلو ګل رژيږی دبهار پهشپو کی
مانه دګل اود بلبل شعرو نه ښلهغواړ ی
چې مې لهزړه نه وينی ښا ښې دظالم لهلاسه
مانه دزلفو او کاکل شعرو نـه ښله غواړ ی

چې شاو خوا راته تمامو طـــن اغزی ی اغز ی شو
نوزه به خنګه دګلونو ترا نـــی ولیکم
چې هری خواته استبداد را ته‌دامونه ایښی
نوزه به خنګه دآزاد ژونـد افسانی ولیکم

• • •

که می پښتو نی چاره راکا ږ ی دو خت قصابا ن
دغه می هوډ دی چې لیکمه خـو رښتیا به لیکم
په زور او زرو دقلم شرا فت نه خرڅو م
دظالم ظلم د مظلو م درد اوژړا به‌لیکم

• • •

قلم به مات کړ م که اتل دپاغو ندو وستا یی
یاد رز مو نو او ننګو نو ترا نی نه لیکی
کاغذ به‌څیر ی کړم شعرو نو ته به اور وا چوم
که دسری لاری دجنګو نو ترا نی نه لیکی

**کابل ـ مخفیگاه**
**۱۸ـحمل ۱۳۵۸**

# دمینی گناهـــکـــار

لکه خزان‌و هلی باغ ته چی گلونه‌راځی
داسی می زړه ته‌ستا خواږه یادونه‌را ځی
دوخت تیارو کی هسی‌ور که‌شوی‌چی نه دی وینم
ځکه می ستر گو ته داو ښکو سیـلاوو نه راځی
لکه چی ستاد ارما نو نو ما ښـی‌اور اخیستی
چی می دزړ ه ورانی جونګړی ته دودونه راځی
لیو نی زړه می دهر چا سودا نه‌لاس وا خیسته
اوس می پـو ښتنی ته‌یواز ی ستاغمونه راځی
مینه ګناه شوه زه د مینـــــــی ګنا هکار و ختم
لاس اوپښو ته می کړی او زنځیرونه را ځی
پریږدی چی زړه دزاهد وچوی دغضب له زوره
بیا میکدی ته درند انو قطا رو نه را ځــی
چی دو فا په میو مست وی‌خمار نه‌پیژنی
پروایی نه و ی که‌سیلی که تو فا نو نه را ځی

**کابل ـ مخفیگاه**
**۱۴ر۸ر۱۳۵۸**

شهيد ملگرى شاه مرجان‌سرمندته!

# دوینوغوتی

هلته( دسری دښتی) په سر ه سینه کی
راټو کید لی دی په‌سرو و ینـولړ لی گلان
له هری پاڼی نه‌یی وینی څا څی
له هره داغه یی دا غو نه اوری
او په هره لښته کی‌یی زانگـــی
دسرو وینو غوټی

گرا نی !
ما مه زورو‌ه
مانه گلونه دچمن مه غواړ ه
مانه شهید ملگری نه هیرین ی
زه‌یی یادو نه هیروی نه شمه

هغوی یی وو ژل
په‌وینو کی‌یی‌و لمبو ل

خو...
زه‌لا ژو ندی یمه(شعرونه) لیکم
دشهیدانو درزمونو حماسی‌جوړوم
اود هغوی په‌پاکه لاره قدمونــه‌ږدمه
هغوی دخپلووینو سری سکروټی
د(توری شپی) تورو زړونو کــی روانی کړ لی
هغوی دوینو او خنجر په قو ت
اود فریاد په ګو لی
اودایمان اوعقیدی په‌ځلیدو نکو ستورو
د(توری شپی) سینه ور څیر ی کړله
(لمر) یی آزاد که
شپه سبا شوه
ستوری ونځیدل
هغوی می نه هیریږی
هغه شهید اوقهرمان ملګری
زماد عقل عقیدی اود ایمان‌ملګری
نو ...
ګرانی !
ما مه زوروه
مانه ګلونه دچمن
مه غوا ړه

کابل ـ پوهنتون
۸ر۲ر ۱۳۵۹

# دطوفـان مـرغـه

دتوفا ن مر غه په توره شپه کې والوت
په دود جن ماحول یې خبنې کړې منګولې
په‌سینه کې یې لمبې دانتقـــام وې
له ککو نه یې سکروټې او ریدلې

زړه یې ډك و دآزاد ژ و ندو نله شو قه
هره بڼه یې وه تږی الوتو ته
هرنظر یې دتوفا ن لا ر مخار له
پام یې نهو پر زیدو او جګید و ته

* * *

دتورتم غشی یې توی کړی‌د زړه وینی
خپلو وینو کې رنګین شولاندی باندی
یوه سره لیکه یې وا یستلـــــه لمر ته
په میړانه لا روانو مخ پـــــه وړاندی

* * *

شپه سبا شوه دتوفا ن ځپــــی شوی تیر ی
غوړ ید لی دی دلمر سور کـــی ګلو نه
خو همغسی ژو ندی دی ز مازړه کی
دتوفان دبی پروا مر غه یادو نه

کابل
۱۳۵۹ر۵ر۷

# دسترگو اعجاز

خزان به‌پسر لی شی سره‌گلو نه‌راته خا ندی
سینه کی می دسوی زړه زخمونه راته خاندی
رقیب می په‌زړه کیښود لداغونه دبدیو
خوما ته سری‌غو تې شو لی دا غو نه را ته خا نــدی
ما اوښکی تویو لی دخپل ځــا ن په‌بې و سیو
داو ښکو په هـــــرموج کی توفانو نه را ته خا ند ی
ذاهد میکده ورانه کړه خوبت ته په‌سجده شو
دده په حماقت باندی جا مو نه راته خاند ی
لو کی شم دسا قی د مستو ستر گو له اعجازه
نشه یی میکده کړه اوس خمو نه راته خا نــدی
سپیڅلی شرا بی یم میکده ز ما کعبه ده
دا ځکه د شرابو دریابو نه راته خا نــد ی
دمینی په‌سره لاره می‌قسم د ی‌چی رسیږم
که نن وی که‌سباو ی ارما نو نه راته خا ند ی

کابل ـ مخفیگاه
۱۳ـ۷ـ۱۳۵۸

# دوینوستوری

زه او ته
دواړه په‌ګډه سره
لاړو دوینو په‌لار

* * *

شپه توفانی غوندی وه
اولاره ډیره پاتی
سړو سیلیو و چو دښتو کی نڅا کوله
ځنګل‌ډوب‌شوی‌ودویری اوسکو ت په‌سین کی

* * *

شپه توفانی وه
بادغوغا کوله
څپی په‌سین کی او ښتی لکه د واورو غرونه
لاره په وینو سره‌وه

بیړی وه دړی وړی
ماښوگان جلو هلی
او شپه وه تکه توره
له‌لری دبگو وآوازونه را تلل

خو زه او ته
دواړه‌په‌گډه‌سره
وو مخ په‌وړ اندی روان
زموږ په مخه کی‌نیمزالی ډیوی
لکه نیم ژوند شمعه
لړلړ رڼا کوله

ځنی‌را و پرزیدل
او ځنی‌و تمبیدل
ځنی‌لا هو شول دبویناکی
توری شپی په ډنډ کی

او ...
ځنو دوینو په‌سرو ستورو
((توره شپه)) وو یشته

چی ...
زه او ته
دواړه په‌گډه سره
ساحل ته

ورسیږو

کابل - پوهنتون
۵ر۴ر ۱۳۵۹

# طوفان و خوځید

بیاد هندو کش له جګو څوکو نه
پورته دافغان ولس غږونه شول
بیاد خونړی خیبر په ترو کـــی
جوړ دشاهز لمیو اټنو نه شو ل
بیاد آسمایی شمله اوچته شوه
مستیی په لمن کی غورځنګونه شول

تیره شوله تیره دغمو ـ نو شپه
ډکه له ستمه د در دو نو شپه

هرخواته ظلمونه ستمو نه وو
هرچیرته ژړا وه فر یادونه‌وو
ټول وطن په‌وینو کی ډو ب شوی‌و
هره‌ور ځ قتلونه وو مرگو نه وو
تللی وه خو ښی لدی و طن څنی
هر کورکی غمو نه وو دردونه‌وو

تنگی حوصلی شوی‌توفان‌وخوځید
مات‌یی‌که‌طلسم زمان‌و خو ځیــد

پاخیره‌وطنه چی آزا د شو لـــی
خلا ص له اهر یمن‌اوله‌شیادشولی
مات دی‌له‌پښونه‌زنځیرونه شو ل
خلاص له زولنو داستبدادشو لی
بیادی‌سر او چت‌شونړ یوالو ته
ورکدی دښمنان‌شول‌اوته‌ښادشو لی

بله شوه په تاکی دنجا ت ډ یوه
ښکلی ځلیدو نکی دحیات ډ یوه

یه زما ولسه قهرمان ته یــی
ننگک ته‌یی‌غیرت‌ته‌یی ایمان ته یی
تاد خاینانو پښتی ما تی کـړ ی
لوی ته‌یی اتل اوپهلوان ته یــی
ورور دټول جها ن دزیارکښانویی
ښه دشر ف اودو جدان ته یی

کلك او پولادی دی‌سنگرونه شه
خاوری ددښمنو دی‌سرو نه شه

**کابل ـ جدی ـ ۱۳۵۸**

دهغو شپږو شهیدو ملګروپه یاد
چې دلږم د میاشتي‌په نو لسمه‌نیټه
دانقلاب ضد عنا صرو سره په‌وسله
واله نښته کې ووژل شول.

# هغوی شپږ کسه وو

هغوی،
شپږ شهیدان دانقلاب دلار ی
شپږ شهیدا ن دآزادی‌قربانیان
شپږ شهیدا ن دزیارایستو نکو دارما ن شهیدا ن
شپږ شهیدا ن او شپږ زلمـــی‌شهیدان.
دخپلوو ینو په بستر په‌و ینـــو سره و یده شول

هغوی،
دشرافت له دښمنانو سره
او دوطن دزیارایستو نکی انسان
له مختورنو قاتلا نو سره
دسر مایی او دستم له مزدورانو سره
دسری جگړی شهیدا ن
او هغوی شپږ کسه وو
شپږ ننګیا لی دو طن
شپږ قهرما ن اوجنګیالی دوطن
شپږ میړنی دوطن
هغوی،
دانقلاب اودوطن په ننګ سرو نه ایښی
هغوی دخلکو دارمان له پاره
اودزیار ایستو نکو د(جنت) په هیله
دخپلو وینو په بستر په و ینو سره و یده شول
او هغوی،
شپږ کسه‌وو ...
شپږ ننګیالی شهیدا ن
شپږ قهرما ن او جنګیا لـــــی شهیدان
شپږ میړنی او شپږ زلمی‌شهیدان

کابل
۲۵ر۸ر۱۳۵۹

# شهید

داستبداد په تورو شپو کې زورید لی شهید
د خپلو خلکو په دردو نو دردید لی شهید
دانقلاب او دوطن دسرو رزمونو اتل
په خپلو وینو کې سور شوی‌لمبیدلی شهید

* * *

سینه بې سپر کړه دوحشی‌ستم داور مخې ته
په‌سره سینه یې دسرو وینو غونچې وتو کید ی
سوری سور ی شو د دښمن په مردکیو باندی
له زخمی زړه نه یې دو ینو دار ی و بهید ی

* * *

هغه دخلکو او وطن په مینه سر ایښی دی
هغه اتل دی هغه لوی دی قهرما ن دی هغه
تل به‌ژو ندی‌وی دوطن دهرانسان په‌زړه کی
هیوی دوینو یې بلیږ ی جاودان دی هغه

کابل

۱۳۵۹ر۷ر۳۰

# وطـن مـــی

وطن می
دامریکا پهز هر جنه توره
زخمی زخمی شو اوپهوینو ککړ
* * * *

وطن می
داقهرما ن اوغیر تیوطن می
د(لوی شیطان) دنیر نکو نو په اور
دسر ما یی په سو زو نکو لمبو
سوی‌ستی شو لکه سوی‌ویتنام
* * * *

خو ...
داسوزید لی اوزخمی وطن می
داقهرمان او غیر تیو طن می
او داسر کش او توفانی وطن‌می
لا همغسی استوار پاتی دی

لەزړه یی وینی څاڅی
مخ‌یی پەو ینو لژ ند
او لویه سینه یی لەرنګینـــــو پر هارونوډکه
خو
سر یی ټیټ نه شو دستم اوسر مایی سپیو ته
او ( لوی شیطان) ته یی سجــده ونه‌کړه
قهرما نی کوی جنګیږ ی‌دښمنانو سره
له شیطانانو سره
دسرما یی او دستم لەغلاما نــو سره

• • •

وطن می
وطن می ګوره داز خمی و طــن می
داقهرما ن او غیر تی‌و طن می
داتوفانی وطن می
چی ما توی دد ښمنانو د غرو ر ککری
او نړو ی دامریکی په لا س جوړ شوی بتان
داپه ډالرو پیر ل شوی انسا نی دښمنان
پاکستانی او چینایی لیو نیا ن

• • •

او وطن‌می
دانقلاب په خونړ ی کر ښه‌ګامونه اخلی
څان رسوی دزیار آیستو نکو د مرام خلی ته

کابل
۱۳۵۹ر۸ر۳۰

# دوینو شعر

زما په‌و چو شو نه‌و
پدی سپیرو خزان و هلوپا نو
دوینو شعر لکه بی باکه نسیم

اوړی را اوړ ی اوچلیږی پسی

او داشر قی ذهن می
لکه دسرو گلو رنګینه با غچه
لهشنو یادو نونه تشیبږی پسی

* * *

خو ته...
لکهو حشی او ناآرامه وږ مه
زما داو ښکو دشبنم ځاځکو کی
دځپل یا غی هو س ګلان لتهو ی
او زما لهو چو اوسپیروشو نهونه
شنی ترانی غوارِی

* * *

خو
زه لاتر اوسهپوری
دوینو شعر لیکمه
او
شنو ترانوته
وز ګار شوی نهیم

کابل پوهنتون
۱۱ر۵ر ۱۳۵٦

# محترم لوستونکی دی داشعار و له لوستلو تر مخه لاندې غلطۍ سمې کړی

| مخ | کرښه | ناسم | سم |
|---|---|---|---|
| | ۱ | حایری | جایزی |
| ٥ | ٦ | حونو | خونو |
| ٥ | ۱۲ | تعمیر | تعمیرو |
| ۱٤ | ۸ | ثباه | تباه |
| ۱٦ | ۹ | ننگیالیو | ننگیالو |
| ۲۰ | ۱۰ | دنور | نور |
| ۲۳ | ۱۳ | وو | و |
| ۲۳ | ۱۵ | ووو | و |
| ۳۰ | ۳ | راواړ وه | ښکاره کړه |
| ۳۰ | ۹ | سره | سر |
| ۳۱ | عنوان | دامخموری | آدمخوری |
| ٤۱ | ۱٦ | وگور | وگوره |
| ٤۲ | ۲ | ناامیده | نامینده |
| ٥۱ | ۳ | ننکی | تنکی |
| ٥٦ | ۸ | اتهونه | اتهونه |
| ٥۸ | ۱٤ | لور | لوری |
| ٦۰ | ۹ | چاره | لاره |
| ٦۹ | ٦ | تپر | تیر |
| ۷۰ | ۹ | جارشم | جارشه |
| ۷٤ | ۲ | وړاند | وړاندی |

| سم | ناسم | کرښه | مخ |
|---|---|---|---|
| ډنډ | ډ نـد | وروستی کرښه | ۷٤ |
| خودوطن | خـو وطن | ۲ | ۷٦ |
| چی له وحشته یی شرمیږی | چی یی ظلمو نو ته حیران ندی | ۸ | ۸۷ |
| شی راته | شی ته | ۱۵ | ۹۳ |
| خولی ته | خـولی نه | ۱٦ | ۹۳ |
| اتـڼونـه | اتـڼونه | ۱ | ۹۵ |
| زه دترخه | زه ترخه | ۱ | ۱۰۰ |
| غـرو | ر و | ۱۳ | ۱۰۳ |
| بی دردو | بی ددرو | ٤ | ۱۰۸ |
| وزر | وزره | ٤ | ۱۰۹ |
| پری | بـری | ۱۱ | ۱۱٦ |
| له لری لری | له لری | ٤ | ۱۲۹ |
| اتڼونـه | اتـڼونـه | ٤ | ۱۳۰ |
| ۱۳۵۹ | ۱۳۵٦ | ۱۷ | ۱۳۸ |




٦ـ مخ ۳ـ کرښه

| ناسم | سم |
|---|---|
| ته یه گرا چاو په کیږی کی زا ییدلی نشی | ورځه ورځه چیر ته ما نی چیر ته قصرونه گوره |

۲۸ مخ ۸ـ کرښه

| ناسم | سم |
|---|---|
| خوك ور ته گوری خوك تری مخورنه | خوك په لندو سترگو خوځیږی ورنه |

## دګاوون توفاني لنډه پيژندنه:



ګاوون توفاني په ۱۳۳۳ هجري لمريز کال، دلغمان ولايت دالينګار درې په يوه کلي کې زيږيدلی ، تر دولسم ټولګي پورې يې دلغمان ولايت دروښان ليسه کې زده کړه وکړه په ۱۳۵٤ کال دکابل پوهنتون د حقوقواوسياسي علومو په پوهنځي کې شامل شو .

په ۱۳۵۷ کال د«عامه حقوقو» له څانګې څخه فارغ شو. ګاوون توفاني لادښوونځي زده کوونکی ؤ چې دخپل ستم وهلې ټولنيز چاپيريال تر اغيزې لاندې يې دشعر په ويلو پيل وکړ. هغه دټولنيزو نابرابرو او غير عادلانه اړيکو په مدرسه کې د مبارز او انقلابي شعر لوست وکړ لومړی شعري يې هم ديوه ساده بزګر دبيوزلې ژوند تمثيلو .

شعرونه يې د ۱۳۵۰ کال نه را په د يخوا درادیو افغانستان او دهيواد دځينو ورځپاڼو، جريدو او مجلو له لارې نشر شويدي .

لومړی شعري مجموعه يې سپرغۍ نوميږي چې په ۱۳۵۹ کال کې يې دافغانستان ددموکراتيک جمهوريت داطلاعاتو او کلتور وزارت له خواد د « سنايي» لومړی درجه جايزه وګټله.

برسېره پر دريو پښتو شعري مجموعو په درې ژبه د شعرونو يوه مجموعه اودلنډو ادبي ټوټو او داستانونو ، کوچنۍ مجموعه لرې چې تر اوسه ندي چاپ شوي .

دګاوون توفاني د حماسي شعرونو يوې مجموعې دشوروي ـ افغان ددوستي په نامه د ۱۹۸۳ عيسوي کال جايزه ترلاسه کړې ده .

ځينې شعرونه يې په روسي ، ليتوايي او بلغاريايي ژبو ژباړل شوي او په بهرکې خپاره شويدي .